Ÿ

إن الحمد لله نحمده ونستعينه ونستغفره ونعوذ بالله من شرور أنفسنا وسيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمدا عبده ورسوله، قال الله تعالى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلاَ تَمُوتُنَّ إِلاَّ وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ .[1] ١٢ و قال الله تعالى يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُواْ رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالاً كَثِيرًا وَنِسَاء وَاتَّقُواْ اللّهَ الَّذِي تَسَاءلُونَ بِهِ وَالأَرْحَامَ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا. ١[2]

و قال ا لله تعالى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا*يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَن يُطِعْ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا [3] (71-70)

د مرګ په اړه د بحثونو څخه د فارغ کېدلو نه وروسته مې اراده وه چې د قيامت په موضوع باندې شروع وکوم خو کله مې چې په دې فکر قلم را واخيست نو مې مناسبه و ګڼله چې د قيامت په څه علامو باندې خپل بحث را تاو کړم پدې سره به هغه خلکو ته چې له قيامت څخه غافل او بې خبره دي او داسې ګمان يې دی لکه دا چې هسې افسانه وي او رښتيا راتلونکی نه وي هغوی ته به ور په ياد شي چې قيامت په رښتيا راتلونکی دی او ډېرې علامې يې واقع شوې دي پدې موضوع کې به د قيامت ډېرې لويې او وړې نښې را ټولې کړم چې ځينې يې واقع شوي دي او ځينې به يې وروسته واقع شي او په هرځای کې به د خپلې خبرې ملا تړ په قرآني آيتونو او نبوي احاديثو سره کوم او په ټولو کتابونو کې د خپل عادت او طريقه کار په ډول به پدې کتاب کې هم صرف هغه خبره د خپلو لوستونکو حضور ته ډالۍ کوم چې هغه رښتيا

[1] سورة آل عمران آية
[2] سورة النساء آية
[3] سورة الأحزاب

وي او زما هم وربانديږ د پوره مطالعې او څیړنې وروسته پوره یقین راغلی وي خو مخکې ددې چې په موضوع باندې قلم ور پورته کړم مناسبه بولم چې خپل لوستونکي ته ور په یاد کړم چې د قیامت د علامو په اړه علم ولې ښه خبره ده او پدې اړه په علم کې څه فایده ده ؟

## د قیامت د نښو پېژندل لاندې فایدې لري

الف : دا چې څوک زده کوي او وایي او د زده کولو کوښښ کوي ان شا ء الله به ورته لوی اجر ورکوي څکه ددې تړاو له آیتونو او احادیثو سره دی او د دیني علم برخه ده هغه دیني علم چې فضائل یې په قرآن کریم او احادیثو کې راغلي دي هغه چې الله یې په اړه فرمایي : **قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لا يَعْلَمُونَ .** [1]

ترجمة : ورته ووایه چې آیا برابر دي هغه کسان چې پوهیږي او هغه چې نه پوهیږي .

همدارنګه الله فرمایي :

**يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ .** [2]

ترجمة : پورته کوي هغه کسان چې مؤمنان دي ستاسې نه او هغه چې علم ورکړل شوی دی درجې .

رسول الله فرمایي : **ومن سلك طريقاً يلتمس فيه علماً ، سهل الله له به طريقاً إلى الجنة .** [3]

---

1 سورة الزمر آية ۹
2 سورة المجادلة آية ۱۱
3 صحيح مسلم

ترجمة : څوک چې په یوه لاره باندې لاړ شي او غرض يې پدې لاره کې د علم حاصلول وي الله به جنت ته دده لاره اسانه کړي .

ب: ددې په خپرولو او پدې باندې د نورو خلکو په خبرولو کې ثواب دی څکه لکه مخکې چې تېره شوه دا د ديني علم برخه ده او دا خبرې ټولې له احاديثو او آياتونو څخه را اخيستل شوي دي چې دا څوک خپروي او خلکو ته يې ور رسوي اميد دی چې دا به له هغه کسانو څخه شي چې الله يې په اړه فرمايي : **وَلَكِنْ كُونُوا رَبَّانِيِّينَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُونَ الْكِتَابَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُونَ.** [1]

ترجمة : بلکه (وواياست) ددې امله چې تاسې ته د اسماني کتاب تعليم درکول کېدو او درس مو ويل بايد علماء اوسئ .

په يو حديث کې رسول الله فرمايي : **فضل العالم على العابد كفضلي على أدناكم ، إن الله وملائكته وأهل السماوات والأرض حتى النملة في جحرها وحتى الحوت ليصلون على معلمي الناس الخير.** [2]

ترجمة : عالم فضل په (بې علمه) عابد باندې دومره دی لکه زما بهتري ستاسې په کوم ادنی باندې ، بېشکه الله پرې رحمت کوي او د هغه فرښتې او د زمکې او اسمانونو اهل حتی مېږی په خپل سوري کې حتی چې ماهی هغه چا ته دعاء ګانې کوي چې خلکو ته سمه لاره ښيي او په ښو کارونو کې د خلکو استاذ وي .

ج: پدې سره په زړه کې وېره پيدا کيږي دا مسائل چې څوک ولولي او يا يې واوري نو دا خبره ور په زړه شي چې دا دی قيامت را نېږدې

---

[1] سورة آل عمران آية ٧٩

[2] سنن الترمذي

شوی دی او هغه ورځ په سر را رسېدلې ده چې په هغه کې به لما سره د ذرې ذرې حساب کیږي نو انسان پدې خبرو سره الله ته راجع کیږي او هغه کسان چې الله ورته هدایت کړی وي چې لدې نه خبریږي چې د قیامت د را رسېدلو ځینې نښې له مخکې نه واقع شوي دي نو هغه الله ته مخ اړوي او په اطاعت او عبادت کې لا زیات کوښښ کوي او هغه چې الله ورته هدایت نه وي کړی هغوی ورڅخه مخ اړوي الله فرمایي : **اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ * وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ** . [1]

ترجمة : قیامت را نېږدې شو او سپوږمۍ سره و شکېدله او دوی چې نښه د قدرت ووني نو مخ واړوي او وایي دا همېشنی سحر دی .

په بل ځای کې الله فرمایي : **فَهَلْ يَنْظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَنْ تَأْتِيَهُمْ بَغْتَةً فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا** . [2]

ترجمة : آیا کافران ددې انتظار وباسي چې قیامت په دوی باندې یو دم راشي په تحقیق سره علامې یې راغلې دي .

د: کله چې انسان دا خبرې واوري او یا یې مطالعه کړي له دنیا څخه یې رغبت کمیږي او که د چا په زړه کې دنیا ډېر ځای نیولی وي هغه کمیږي او لدې خبرو سره زړه نرمیږي چې بیا الله ته رجوع کوي او د هغه اطاعت ته مخه کوي او انسان ته ور په زړه کیږي چې قیامت را روان دی رسول الله چې کومې علامې د قیامت لپاره یادې کړې دي هغه اکثر واقع شوي دي نو را نېږدې شوی دی .

---

[1] سورة القمر آیة ١ او ٢
[2] سورة محمد آیة ١٨

هــ: کـلـه چې انـسـان لـدې خـبـرو خـبـر شي او يـا ور پـه يـاد شي نـو انـسـان پـدې وډار شي هسې نـه چې يـودم راتـه د تـوبـې دروازه بـنـده شي ځکه رسول ﷺ د څو لـويـو نښو پـه اړه فـرمـايـلـي دي کـلـه چې دا نـښې را شي بـيـا د تـوبـې دروازه ورسره بـنـديـږي رسول ﷺ فـرمـايـي : **ثلاث إذا خرجن لا ينفع نفساً إيمانها "لم تكن آمنت من قبل أو كسبت في إيمانها خيراً" : طلوع الشمس من مغربها ، والدجال ، ودابة الأرض** .[1]

تـرجمة : درى شيـان دي چې کـلـه را بـهـر شي بـيـا بـه نـفس تـه ايـمـان هيڅ فـايـده نـه کـوي چې لـه مـخکې نـه پـه ايـمـان مـشرف شوی نـه وي او يـا يـې پـه ايـمـان کې نـېک اعمـال نـه وي کـړي ۱. يـو چې لـمر لـه مـغرب (لـمر لـويـده) څخه را وخيـږي ۲. دجـال ۳. دابـة الارض .

و: د قـيـامـت نـښې اکـثر يـو ډول مـصيـبـتـونـه دي چې انـسـان پـدې اړه عـلـم ولـري نـو لـه هـغـه څخه د خلاصون پـه اړه علـم دا يـو ډول غـوره عـلـم دی او د هغې د پـېژنـدلـو لـپـاره دا يـوه لاره ده چې انـسـان پـدې خـبـر شي چې دا د قـيـامـت نـښه ده نـو انـسـان بـيـا فـيـصلـه کـولـی شي چې لـدې سره انـسـان څه وکـوي ، ځـان ورڅخه څنګه خلاص کـړي او داسې نـورې ډېـرې فـايـدې لـري نـو ځکه مـا دا هـوډ وکـړ چې ددې لـپـاره پـدې سلـسلـه کې بـېل کـتـاب جـوړ کـړم او څه چې زمـا سره دي هغه د خـپـل لـوسـتـونـکي تـر ذهـن پـورې هـم ور ورسوم اول بـه شروع د ځيـنـي قـرآنـي آيـتـونـو څخه وکـوم پـه قـرآن کـريـم کې هـم د قـيـامـت د علامـو ذکـر شتـه پـه عـربـي کې د قـيـامـت د علامـو لـپـاره يـو تـعـبـيـر اشراط الـسـاعـة راغـلـی دی اشراط د الـشَرَط جمـع ده عـلامې تـه ويـل کـيـږي هـمـدارنـګه پـه عـربـي کې

[1] صحيح مسلم

اشراط الشی د کوم شي اوائلو او شروع ته هم ویل کیږي .[1]

او په اصطلاح کې اشراط الساعة د قیامت علامو ته ویل کیږي او دا لفظ په قرآن کریم کې هم یاد کړل شوی دی هلته الله فرمایي : **فَهَلْ يَنْظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَنْ تَأْتِيَهُمْ بَغْتَةً فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا** .[2]

ترجمة : آیا کافران ددې انتظار وباسي چې قیامت په دوی باندې یو دم راشي په تحقیق سره علامې یې راغلې دي .

یعني د قیامت ځینې علامې را ښکاره شوي دي لکه د رسول الله بعثت دا هم د قیامت له نښو څخه دي ځکه تاسې به ډیر ځله آوریدلي وي چې رسول الله ته نبي آخر الزمان (د آخرې زماني نبي) ویل کیږي ددې معنی دا چې کله رسول الله دنیا ته راشي دا به آخر وخت وي یعني قیامت به را نېږدې وي همدارنګه د قمر (سپوږمی) په مینځ دوه ځایه کېدل او سره ماتېدل هم د قیامت له علامو څخه دي او هغه را ښکاره شوي دي .

همدا رنګه د قیامت له نښو څخه په قرآن کریم کې په یو ځای کې د آیات په عبارت سره تعبیر شوی دی دهغې هم معنی همدا ده چې د قیامت نښې الله فرمایي : **هَلْ يَنْظُرُونَ إِلَّا أَنْ تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ** .[3]

ترجمة : آیا دوی ددې انتظار وباسي چې دوی ته ملائکې راشي او یا ستا رب ورته راشي او یا ستا د رب ځینې نښې د قدرت ورته راشي؟

---

[1] لسان العرب
[2] سورة محمد آیة ۱۸
[3] سورة الانعام آیة ۱۵۸

په تفسیر کبیر کې ددې آیة په تفسیر کې لیکي :
**وأجمعوا على أن المراد بهذه الآيات علامات القيامة .** [1]

ترجمة : د علم التفسیر علماوو پدې اتفاق کړی دی چې مطلب پدې آیت سره د قیامت نښې دي .

په احادیثو کې د قیامت نښو ته امارات الساعة هم ویل شوي دي د هغې هم معنی نښې دي ځکه امارة په عربي لغت کې نښې او علامې ته ویل کیږي په یو حدیث کې چې حدیث جبریل ورته ویل کیږي حضرت عمر یې روایت کړی دی په هغه کې جبریل په یو ځای کې رسول الله ته فرمایي : ماته د قیامت په اړه خبر راکړه رسول الله ورته وویل : هغه کس چې سوال ورڅخه کیږي پدې خبر کې تر هغه کس څخه ډېر نه دی خبر چې کوم سوال کوي بیا حضرت جبریل ورته وویل : **فأخبرني عن أماراتها** (یعني بیا له نښو د قیامت څخه خبر راکړه) .

د احادیثو شارحین کرام فرمایي چې امارات یعني علامات او اشراط (یعني نښې د قیامت) .

همدارنګه په یو حدیث کې د قیامت له نښو څخه په علامات الساعة باندې هم تعبیر شوی دی او د هغې هم معنی همدا ده چې د قیامت نښې په قرآن کریم کې یو آیت دی **وَإِنَّهُ لَعَلَمٌ لِلسَّاعَةِ** .[2] ددې آیت په تفسیر کې حضرت ابن عباس حضرت ابو هریره ، حضرت ابو مالک ، حضرت ابو ذر غفاري ، حضرت زید بن علي فرمایي : **أي : نزول عيسى لشرط وعلامة على قرب القيامة** (ترجمة : یعني د حضرت عیسی را نازلېدل دا یوه علامه ده د قیامت په را نږدې کېدلو باندې) .

---

[1] تفسیر کبیر للامام الرازي
[2] سورة الزخرف آیة ٦١

نو دا مختلف عبارتونه اشراط الساعة ، وآيات الساعة ، أمارات الساعة اوعلامات الساعة الفاظ مختلف دي لكن په يوه معنى باندې دلالت كوي چې د قيامت نښې دي نو دېته الفاظ مترادفه (داسې الفاظ چې سره بدل وي لكن مطلب يې يو وي) ويل كيږي .

## الساعة

الساعة په لغت كې موجوده وخت ته ويل كيږي ، همدارنګه د ورځې او د شپې يوې وړې برخې ته ويل كيږي عرب وايي : جلست عند ك ساعة (لتا سره يوه لحظه او يا ساعت كېناستلم) او شپه او ورځ چې په څلور ويشتو برخو تقسيم كړل شي دې هرې برخې ته يې هم ساعت ويل كيږي ځكه خو مونږ وايو څلور ويشت ساعته په عربي كې ددې جمع ساعات راځي .

په اصطلاح كې د قيامت ورځ ته ويل كيږي زجاج د عربيت ماهر عالم فرمايي : **الساعة في كل القرآن الوقت الذي تقوم فيه القيامة** (ساعت په ټول قرآن كې هغه وخت ته ويل كيږي چې په هغه كې قيامت قائم كيږي) .

امام قرطبي فرمايي : **سميت القيامة بالساعة لسرعة الحساب فيها.** [1]

ترجمة : قيامت ته ددې امله ساعت ويل كيږي چې حساب پكې زر ختميږي .

د قيامة لفظ په قرآن كريم كې اويا ځله راغلى دى . [2]

---

[1] الجامع لاحكام القرآن للقرطبي
[2] المعجم المفهرس لالفاظ القرآن الكريم

قیامة په لغت کې له قیام (درېدلو) څخه اخیستل شوی دی او کله د عزم په معنی باندې هم ذکر کیږي .[1]

په اصطلاح کې قیامت له قبرونو څخه د بیا را پورته کېدلو ورځ ته ویل کیږي دېته د یوم البعث او یوم الحساب هم ویل کیږي او دېته د قیامة ورځ ځکه ویل کیږي چې پدې ورځ باندې خلک له قبرونو څخه را پورته کیږي ﷲ هم د قیامت د ورځې په اړه فرمایي : **يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ** .[2]

ترجمة : هغه ورځ چې خلک رب العالمین ته دریږي .

د قیامت لپاره ډېر الفاظ کارول شوي دي لکه الحاقة ، الصاخة ، الطامة ، یوم التناد، یوم التغابن او داسې نور خو کله چې د علامو څخه بحث کیږي هلته صرف القیامة او الساعة یادیږي لکه اشراط الساعة او علامات القیامة .

---

[1] **لسان العرب**
[2] **سورة المطففین آیة ٦**

# د قيامت نښې

د قيامت نښې په يو تقسيم په دوه ډوله دي

١. وړې نښې

٢. لويې نښې

## وړې نښې

هغه واقعې دي چې تر قيامت ډېر وخت وړاندې مخکې وي لکه عادي کارونه داسې وي او که لوی کارونه هم دي خو په تدريج سره واقع کيږي چې لوی والی يې نه محسوس کيږي لکه د علم قبض کېدل ، د جهل ښکاره کېدل ، د شرابو څښل ، تعميرونه پورته کول ، او يا داسې نور ځينې ددې نښو د لويو نښو سره په يو ځای ښکاره کيږي او ځينې ترېنه وروسته ښکاره کيږي .[1]

دا وړې نښې ډېرې دي په احاديثو کې يادې کړل شوي دي ددې کتاب په اوږدو کې به زه د ډېرو د را ټولولو کوښښ وکوم ان شاء الله.

او دا وړې نښې هم په درې ډوله دي :

١. هغه چې واقع شوي دي او تېرې شوي دي لکه د رسول الله راتلل ، او د سپوږمۍ په دوه برخو تقسيم کېدل او داسې نور .

٢. هغه چې واقع شوي دي او اوس هم روانې دي لکه د سود خپرېدل او عام کېدل ، د شرابو د څښلو زياتېدل ، زنا عام کېدل (ددې ټولو دليلونه را روان دي) .

٣. هغه چې تراوسه پورې نه دي واقع شوې لکن داسې وخت به راشي چې يو څوک د خپل زکات مال

---
[1] فتح الباري

وباسې داسې څوک به نشي پيدا کولی چې هغه له ده څخه زکات قبول کړي ، د عربو زمکه به باغونه شي او نهرونه به پکې پيدا شي ... او داسې نور را روان دي .

## لويې نښې

دا هغه لوی کارونه دي چې د قيامت سره په نيږدې وخت کې به واقع کيږي او عادي کارونه نه وي او له عادت نه خلاف وي لکه د دجال را ښکاره کېدل ، د حضرت عيسی راتلل او داسې نور په يو روايت کې لس ذکر شوي دي دی لکن ځينې علماء وايي او دليل يې يو حديث دی چې هغه روايت صرف لس علامې جمع کړي دي او په هغه حديث کې داسې يو دليل نشته چې له هغه نه ښکاره شي چې همدا لس دي نورې ورسره نشته نو معنی دا چې زياتېدلی هم شي .

# د قيامت واقع شوې نښې

د قيامت هغه وړې نښې چې واقع شوې او تېرې شوې دي :

## ١. د رسول الله مبعوث کېدل

رسول الله پخپله ددې خبر ورکړی دی چې دده مبارک مبعوث کېدل د قيامت له نښو څخه دي او دا د قيامت په وړو نښو کې اوله نښه ده حضرت سهل بن سعد فرمايي : **رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم قال بأصبعيه هكذا، الوسطى والتي تلي الإبهام، وقال: بعثت أنا والسَّاعَة كهاتين .** [1]

ترجمة : ما رسول الله ولید چې هغه دوه ګوتې داسې سره سريښ نيولې وې وسطی (مينځنۍ ګوته) او هغه چې ورسره نېږدې ده ابهامه او وېې فرمايل : زه او قيامت داسې سريښ سره را ولېږل شوو .

يعني رسول الله پخپله وويل چې زه د قيامت سره سريښ را لېږل شوی يم يعني په څه وخت کې چې زه را لېږل شوی يم قيامت هم پدې وخت کې نېږدې دی او زما او د قيامت په مينځ کې ډېره فاصله او وخت نشته .

او په يو بل روايت کې بيا حضرت انس بن مالک فرمايي **قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "بُعثت أنا والسَّاعَة كهاتين، كفضل إحداهما على الأخرى، وضم السبابة والوسطى .** [2]

ترجمة : زه او قيامت داسې سره را ولېږل شوو لکه دا دوه ګوتې لکه د يوې زيادت په بله

---

[1] **رواه البخاري**
[2] **رواه البخاري و مسلم**

باندې او سبابه (د شهادت ګوته) او وسطی (مینځنۍ ګوته) یې له یو بل سره سریښ کړې .

د ترمذي په روایت کې هم همداسې راغلي دي چې رسول الله د شهادت او مینځنۍ ګوته سره یو ځای کړې او ابو داود هم سبابة او وسطی یاده کړېده .

امام احمد او حاکم د حضرت ابي جبیرة څخه روایت کوي هغه فرمایي رسول الله فرمایل : **بعثت في نَسَم السَّاعَة** (ترجمة : زه د قیامت په نسیم کې یعني د هغه تر شروع لږ وړاندې را لیږل شوی یم ) علماء وایي ددې مطلب دادی چې زه د قیامت په اولنیو نښو کې او د قیامت د راتلو په وخت کې را لیږل شوی یم .

امام قرطبي په خپل کتاب التذکرة کې چې کله د قیامت د نښو خبرې کوي هغه ذکر کړي دي چې د قیامت په وړو نښو کې اول رسول الله دی ځکه دا نبي آخر الزمان دی او پداسې وخت کې را لیږل شوی دی چې بیا دده او د قیامت په مینځ کې بل نبي نه راځي .[1]

د سیرت په احادیثو کې راغلي دي : **أن اليهود كانوا يتحدثون عن رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه يبعث مع السَّاعَة** .

یهودو به مخکې خبرې کولې (او د هغوی خبرې د هغوی له اسماني وحیو څخه او د هغوی د پیغمبرانو له خبرو څخه اخیستل شوې وې) هغوی به ویل چې رسول الله به د قیامت سره سریښ دنیا ته را لیږل کیږي .

---

[1] **التذكرة للقرطبي**

## ۲. شق القمر (د سپوږمۍ دوه ټوټې کېدل)

داهم د قيامت له هغه نښو څخه ده چې مخکې واقع شوېده الله پدې اړه فرمايي : اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ * وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ .[1]

ترجمة : آيا كافران ددې انتظار وباسي چې قيامت په دوی باندې يو دم راشي په تحقيق سره علامې يې راغلې دي .

امام نووي فرمايي : قاضي فرمايي : د سپوږمۍ په دوه برخو تقسيم کېدل زمونږ د پيغمبر د لويو معجزو څخه يوه ده او د آيت سره سره ډېرو صحابه وو يې هم روايت کړی دی خو ددې سره سره ځينې د ايمان او اسلام نه منكر خلک يې نه مني او بې ځايه وربانديې اعتراضونه كوي او نكتې پکې ګوري د دوی په اړه امام زجاج فرمايي : وقد أنكرها بعض المبتدعة المضاهين لمخالفي الملة، وذلك لما أعمى الله قلبه، ولا إنكار للعقل فيها؛ لأن القمر مخلوق لله تعالى يفعل فيه ما يشاء، كما يفنِيه ويُكوِّره في آخر أمره .[2]

ترجمة : ځينې بدعتي خلكو يې انكار كړی دی هغه كسان چې د ملت مخالفت كونكي دي او الله د هغوی زړونه د حق له ليدلو څخه ړانده كړي دي او پدې كې د انكار ځای نشته عقل پكې انكار نه كوي ځكه سپوږمۍ د الله مخلوق شی دی چې څنګه د الله خوښه شي الله پکې هغه څه كوي لكه چې فناء كوي يې او په آخر كې يې خړه كوي (رڼا يې ور ختموي) .

---

[1] سورة القمر آية ۱ او ۲

[2] شرح النوي على مسلم

امام ابن کثیر فرمايي : **قد كان هذا في زمان رسول الله صلى الله عليه وسلم كما ورد ذلك في الأحاديث المتواترة بالأسانيد الصحيحة، وهذا أمر متفق عليه بين العلماء، أن انشقاق القمر قد وقع في زمان النبي صلى الله عليه وسلم، وأنه كان إحدى المعجزات الباهرات.** [1]

ترجمة : دا واقعه د رسول الله ﷺ په زمانه کې شوې وه لکه په متواترو احادیثو کې چې راغلي دي په صحيح اسنادو سره او دا يو داسې کار دی چې ټولو علماوو يې په صحت باندې اتفاق کړی دی او ټول پدې متفق دي چې سپوږمۍ د رسول الله ﷺ په وخت کې په مينځ دوه ټوټې شوې وه او دا چې دا د رسول الله ﷺ د غوره او ښکاره معجزو څخه وه .

همدارنګه په تفسير ابن کثير کې د سورة القمر په تفسير کې امام ابن کثير متعدد احاديث هم ذکر کړي دي د مثال په توګه حضرت انس بن مالک فرمايي : **إن أهل مكة سألوا رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يريهم آية، فأراهم انشقاق القمر .** [2]

ترجمة : د مکې خلکو له رسول الله ﷺ څخه وغوښتل چې دوی ته د يوه معجزه ور ښکاره کړي بيا رسول الله ﷺ دوی ته د سپوږمۍ په دوه برخو تقسيم کېدل ور وښودل .

حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي : **بينما نحن مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بمنى؛ إذا انفلق القمر فلقتين، فكانت فلقة وراء الجبل، وفلقة دونه، فقال لنا رسول الله صلى الله عليه وسلم: أشهدوا.** [3]

ترجمة : يو وخت چې مونږ له رسول الله ﷺ سره وو په منی کې چې سپوږمۍ دوه ټوټې شوه يوه ټوټه

---

[1] **تفسير ابن كثير**
[2] **رواه البخاري**
[3] **رواه مسلم و بخاري**

یې تر غره هغه خوا ته وه او یوه یې دې خوا ته
وه مونږ ته رسول الله ﷺ وویل : ورته وګورئ .

او هغه کسان چې اوس یې له نیږدې نه د سپوږمۍ
نه لیدنه کړیده هغوی انصاف کړی دی او اوس یې
هم اعتراف کړی دی چې په سپوږمۍ کې یوه کرښه
ده او د دوه ټوټې کیدلو نښه پکې موجوده ده او
د جیولوجي ماهر داود موسی چې کله دا کرښه په
سپوږمۍ کې ولیده او ددې لپاره یې هیڅ وجه
نشوای پیدا کولی بالآخره یې په قرآن کریم کې
آیت پیدا کړو چې د سپوږمۍ د دوه ټوټې کیدلو
خبره کوي نو فوراً په اسلام مشرف شو او دا یې
ومنله چې قرآن پداسې وخت کې چې هیڅ اسباب او
آلات نه وو ۱٤۰۰کاله وړاندې له یو داسې حقیقت
نه خبرې کوي چې مونږ اوس د ډیرو آلاتو او
اسبابو سره را معلوم کړو .

د شق القمر واقعه

تاريخ يې :

د ذی الحجې ۱٤ تر هجرت پنځه کاله وړاندې

وجه يې :

حضرت عبد الله ابن عباس فرمايي : **اجتمع المشركون إلى رسول الله(صلى الله عليه وآله) فقالوا: إن كنت صادقاً فشُقّ لنا القمر فرقتين فقال لهم رسول الله(صلى الله عليه وآله): إن فعلتُ تؤمِنون"؟ قالوا: نعم. وكانت ليلة بدر، فسأل رسول الله(صلى الله عليه وآله) ربّه أن يعطيه ما قالوا، فانشقّ القمر فرقتين، ورسول الله ينادي: يا فلان، يا فلان، اِشهدوا.** [1]

ترجمة : مشرکان رسول الله ته را ټول شول ورته يې وويل : که ته رښتونی يې نو دا سپوږمۍ مونږ ته دوه ټوټې کړه رسول الله ورته وويل : که ما دا کار وکولو تاسې ايمان راوړئ؟ دوی ورته وويل : هو او دا شپه هم د بدر (پوره سپوږمي) شپه وه رسول الله له خپل رب نه سوال وکولو چې هغه ورکړي چې دوی يې غوښتنه کړېده نو سپوږمۍ دوه ټوټې شوه رسول الله اواز کولو اې فلانيه ، اې فلانيه ، اې فلانيه وګورئ ورته .

پدې ځای کې حضرت جبير بن مطعم له خپل پلار نه روايت کړی دی هغه فرمايي : فقالوا: **سحرنا محمّد، فقال بعضهم: لإن كان سحرنا فما يستطيع أن يسحر الناس كلّهم.** [2]

ترجمة : دوی وويل : محمد په مونږ باندې سحر وکولو (دا سپوږمۍ دوه ټوټې شوې نه ده هسې مونږ ته دوه ټوټې ښکاره کيږي) خير که ده په

[1] **تفسير مجمع البيان**
[2] **سنن الترمذي**

مونږ سحر کړی وي خو هغه په ټولو خلکو باندې سحر نشي کولی .

په یو روایت کې دا هم راغلي دي چې دوی ورته وویل : محمده کله چې زمونږ مسافر او قافلې له شام او یمن څخه راشي مونږ به له هغوی نه هم پوښتنه کوو که هغوی دا سې لیدلي وي نو بیا خو صحیح ده او که هغوی نه وي لیدلي بیا دا ستا سحر دی چې په مونږ د کړی دی نو بیا الله آیت نازل کړو **اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَر** .

## واقعه

لکه مخکې چې تېر شول چې اوس د فضاء د علومو ماهرینو دا خبره منلې ده چې سپوږمۍ یو وخت دوه برخې شوې ده پدې اړه د الحزب الاسلامي البریطاني مشر وایي چې زما تر مسلمان کېدو وړاندې څه مسلمانو ملګرو راته قرآن کریم هدیه کړو او لما یې وغوښتل چې دا لږ ولوله ترجمه یې هم درلوده ما هسې را واړولو او دې ځای ته پکې ورسېدم چې **انشَقَّ الْقَمَر** (سپوږمۍ دوه برخې شوه) زه دې خبرې ته ډېر حیران شوم او سوال راته پیدا شو چې دا څوک کولی شي چې سپوږمۍ په دوه برخو تقسیم کړي نو بس له همدې سوال سره مې تلاوت همدلته بس کړو نور مې ونه لوست ډېر وخت وروسته مې په تلویزیون کې یو چینل را واړولو چې په هغه کې دری کسان امریکایان دي چې هغوی فضایي سفرونه کوي د تلویزیون نطاق ورسره خبرې کوي او دوی ته وایي چې تاسې سپوږمۍ ته سفر کوئ پدې ډېر زیات مصارف کیږي ددې کولو څه فایده ده ولې دا مصارف ولې په نورو اجتماعي ګټو نه کوئ او دا یو ډول مال خرابول دي او اسراف کول دي دې کسانو ورته ویل : دا مال بې فایدې نه ځي او پدې کې فایده وي پدې مینځ کې یوه خبره راغله چې دوی یو ځل سپوږمۍ ته تللي دي او هلته یې په سپوږمۍ باندې د امریکا بیرغ

لګولی دی په هغه سفر باندې ۱۰۰۰۰۰۰۰۰۰۰۰ یو لک میلیونه ډالر مصرف شوي وو پدې سره له دوی سره دې بحث کونکي وربانديې ور چغه کړه دا کوم لیونتوب دی تاسې یو لک میلیونه ډالر پدې ولګول چې امریکي جنډه مو په سپوږمۍ کې ولګوله ؟ دوی ورته وویل : نه ددې ډالرو د مصرف کولو غرض دا نه وو چې مونږ په سپوږمۍ باندې د امریکا بیرغ ولګوو بلکه مونږ غوښتل د سپوږمۍ له داخلي ترکیب نه ځان خبر کړو او پدې اړه مطالعه وکوو او مونږ د سپوږمۍ په اړه یو حقیقت پیدا کړو که ددې مال څو چنده مصرف مو په خلکو کړی وای مونږ هغوی ته پدې اړه قناعت نشوای ورکولی هغه پوښتنه وکوله څه حقیقت؟ دوی ورته وویل : دا سپوږمۍ یو وخت په کومه زمانه کې دوه ټوټې شویده او بیا بېرته سره لګیدلې ده .. هغه په ډیر تعجب کې ورڅخه پوښتنه وکوله تاسې پدې څه پوه شوئ؟ هغوی وویل مونږ هلته یوه کرښه ولیده چې د سپوږمۍ په هرځای کې لیدل کیږي او هلته مو نورې داسې نښې ولیدې چې د جیولوژي استاذانو او ماهرینو ته مونږ وویل هغوی ویل ددې معنی داد چې سپوږمۍ دوه ټوټې شویده او ددینه بغیر دا نښې پکې نشي پیدا کېدلی رئیس الحزب الاسلامي البریطاني وایي زه زر د خپلې چوکۍ نه پاڅېدم او ومې ویل : یوه معجزه چې د رسول الله ﷺ په لاس باندې څوارلس سوه کاله مخکې واقع شویده اوس امریکایان دیته اړ ایستل چې د هغې په تحقیق کې یو لک میلیونه ډالر مصرف کړي ترڅو هغه ثابته کړي او بیا نتیجه یې هم مثبته راوتلې ده او بېرته هغه ترجمه لرونکي قرآن کریم ته کېناستلم او تلاوت مې یې شروع کړو چې سورة قمر مې ختم کړو همدا مې د مسلمان کېدلو سبب شو .

## ۳. د رسول الله ﷺ وفات

د رسول ﷲ وفات هم د قيامت له نښو څخه دی حضرت عوف بن مالک فرمايي : **اتيت النبي صلى الله عليه وسلم في غزة تبوك وهو في قبة من آدم فقال: اعدد ستا بين يدي الساعة: موتي ثم ... الخ** .[1]

ترجمة : زه رسول ﷲ ته د تبوک په غزوة کې راغلم هغه مبارک د څرمنې په يوه قبة کې ناست وو راته يې وويل تر قيامت وړاندې شپږ شيان حساب کړه اول يې په هغه شپږو شيانو کې راته وويل : زما مرګ ... پاتې نور حديث اوږد دی هره برخه به يې په خپل ځای کې راشي .

او ترڅو چې رسول ﷲ ژوندی وو يو روحانيت موجود وو چې کله رسول ﷲ وفات شو هغه له مينځه لاړو او د رسول ﷲ وفات مسلمانانو ته تر ټولو اول مصيبت دی چې مسلمانانو ته ورسېدو او رسول ﷲ هم مخکې له خپل وفات محسوسه کړې وه چې زما تلل د مسلمانانو لپاره لويه ضائعه ده ځکه خو يې فرمايل : **إذا أصاب أحدكم مصيبة، فليذكر مصيبته بي، فإنها من أعظم المصائب** .[2]

ترجمه : پتاسې کې چې چاته څه مصيبت ورسېدو نو دا د ور په ياد کړي چې زما تلل ورته لوی مصيبت دی ځکه دا له لويو مصيبتونو څخه دی.

او مدينه منوره ورسره تياره شوه ، وحی قطع شوه او د رسول ﷲ د وفات سره د فتنو شروع وشوه ځينې خلک له اسلام نه واوښتل ، مسيلمة کذاب د پيغمبري دعوه وکوله ، ځينې خلک يې له ځان سره ملګري کړل .

حضرت محمد بن محمد المنبجي الحنبلي فرمايي : **ومن أعظم المصائب في الدين موت النبي صلى الله عليه وسلم؛ لأن**

---

[1] رواه البخاري
[2] رواه البيهقي في شعب الايمان

المصيبة به أعظم من كل مصيبة يصاب بها المسلم؛ لأن بموته صلى الله عليه وسلم انقطع الوحى من السماء إلى يوم القيامة، وانقطعت النُّبُوَات، وكان موته أول ظهور الشر والفساد بارتداد الذين ارتدوا عن الدين من الأعراب، فهذا أول انقطاع عُرَى الدين ونقصانه... وغير ذلك من الأمور التي لا تحصى. [1]

ترجمة : په دين کې له لويو مصيبتونو څخه يو د رسول الله ﷺ وفات وو ځکه د هغه مصيبت تر بل هر مصيبت څخه لوى دى چې مسلمان ته رسيږي ځکه د رسول الله ﷺ په وفات سره وحى قطع شوه تر قيامت پورې بيا وحى نه راځي ، نبيان ورسره ختم شول دده ﷺ نه وروسته بل نبي نه راځي او دده د وفات سره سم شر او فساد او له دين څخه آوښتل شروع شول لکه ځينې بانډچيان بېرته وواښتل اودا دين ته يو لوى نقصان شو او داسې نورو مصيبتونه د رسول الله ﷺ له وفات نه راغلل چې تر شمېر بهر دي .

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه په يو حديث کې له ښه وضاحت سره هغه تصوير ښکاره کيږي چې د رسول الله ﷺ له وفات نه وروسته په مدينه منوره کې را مينځ ته شو هغه مبارک فرمايي : **لما كان اليومُ الذي دخل فيه رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينةَ أضاءَ منها كلُّ شيء، فلما كان اليومُ الذي مات فيه أظلَمَ منها كل شيء .** [2]

ترجمة : په کومه ورځ چې رسول الله ﷺ مديني منورې ته راغلو هرشی يې رڼا کړل په کومه ورځ چې وفات شو هرشی پکې تياره شول .

رسول الله ﷺ ته د معجزې په ډول معلوم وو چې په امت کې به ځينې داسې خلک وي چې ما به ډېر يادوي او زه به ورته ياديږم او فرمايي : **ليأتينَّ**

[1] تسلية اهل المصائب
[2] سنن الترمذي

على أحدكم زمانٌ لأن يراني أحبَّ إليه من أن يكون له مثل أهله وماله .[1]

ترجمة : په يو د تاسې به داسې وخت راشي دا چې ما وويني دا به دده لپاره ښه ښكاره كيږي لدې نه چې ده لره دې دده د اهل او مال په اندازه څه وي .

يعني زه به ورته تر خپل اهل او خپل مال نه زيات ګران وم او زما ليدل به تر خپل اهل او مال نه ډير ښه ښكاره كيږي .

[1] رواه البخاري

# ٤. په مسلمانانو کې د يوې بيماري لګېدل

د قيامت بله نښه داده چې په مسلمانانو کې به يوه بيماري ولګيږي لکه قعاص الغنم داسې بيماري به وي او دا په څارويو کې هغه بيماري ده چې کله په کوم څاروي ولګيږي د هغه له پوزې څخه يو ډول اوبه و بهيږي او ځای په ځای مړ شي.

حضرت عوف بن مالک فرمايي ماته رسول ﷺ وفرمايل : **اُعْدد ستاً بين يدي السَّاعَة** (تر قيامت وړاندې شپږ شيان حساب کړه) او بيا داوړده حديث په اوږدو کې رسول ﷺ زياته کړه **مُوتَان يأخذُ فيكم كقُعَاص الغنم** (مُوتان مبالغه ده په موت کې يعني په مسلمانانو کې به مرګ زيات واقع شي داسې لکه په څارويو کې چې د قعاص الغنم بيماري ولګيږي).

ددې حديث معنى داده چې د قيامت په نښو کې يوه داده چې مرګونه به زيات شي ځينې علماء وايي چې د قيامت دا نښه د اول ځل لپاره د حضرت عمر په خلافت کې په عمواس کې رښتيا شوه چې هلته طاعون (وبا) بيماري ولګېده او زيات خلک يې ووژل پدې اړه يو عالم الشيخ يوسف الوابل فرمايي : **ففي سنة ثمان عشرة للهجرة على المشهور الذي عليه الجمهور وقع طاعون في كورة عمواس، ثم انتشر في أرض الشام فمات فيه خلق كثير من الصحابة رضي الله عنهم، ومن غيرهم. قيل: بلغ عدد من مات فيه خمسة وعشرون ألفاً من المسلمين، ومات فيه من المشهورين أبو عبيدة عامر بن الجراح أمين هذه الأمة رضي الله عنه.** [1]

ترجمة: د مشهور قول له مخې د هجرت په آتم کال په عمواس کې د طاعون بيماري ولګېده او بيا د

---

[1] اشراط الساعة للشيخ يوسف وابل

شام په زمکه کې خپره شوه په هغې کې ډېر زيات خلک صحابة په حق ورسېدل او بيغير د صحابه وو څخه نور هم ډېر خلک پکې په حق ورسېدل د يو قول له مخې پدې طاعون کې د وفات شويو شمېره تر ۲۵۰۰۰ مسلمانانو پورې ورسېده او پدې کې د مشهورو خلکو نه حضرت ابو عبيدة عامر بن الجراح (امين هذه الامة) هم وفات شو او په تاريخ کې دا واقعه د طاعون عمواس په نوم مشهوره ده او په اسلام کې ددېنه مخکې کله وبا بيماري نه وه لګېدلې.

## ٥. د بيت المقدس فتح کېدل

د قدس نوم په توراة کې اورشليم دی او يورشالم هم ورته ويل کېدل او دا ښار کنعانيانو تقريباً پنځه زره کاله وړاندې جوړ کړی رسول الله خپل امت ته ددې زيری ورکړی وو چې يو وخت به دا ښار ستاسې په لاس باندې فتح کيږي او ويلي يې دي چې دا هم د قيامت له نښو نه يوه نښه ده مخکې هم حديث تېر شو حضرت عوف بن مالک فرمايي ماته رسول الله وفرمايل : تر قيامت وړاندې شپږ شيان حساب کړه او بيا يې په يو ځای کې راته شمار کړل د بيت المقدس فتح مخکې تېر شول چې دا حديث په بخاري شريف کې راغلی دی .

او د بيت المقدس فتح هم واقع شوېده دا د هجرت په ١٦ کال کې وه د حضرت امير المؤمنين عمر بن الخطاب په خلافت کې وه کله چې د مسلمانانو لښکرې تر بيت المقدس تاو شوې او دا ښار يې محاصره کړو نو د هغه ښار خلک را ټول شول او له مسلمانانو څخه يې د ځان لپاره امان وغوښت او د مسلمانانو سره له جنګ نه يې ډډه وکوله او له دوی سره د صلح ترون ته حاضر شول او د صلح لپاره يې دا شرط کړه چې ترن ته به حضرت

عمر پخپله راځي حضرت عمر پخپله لاړو هلته د دوی مشر پدې وخت کې صفرنیوس وو هغه ته یې د هرڅه سره امان ورکړو چې دوی به خپلې عبادتګاوې ساتي او د دوی مالونه او سرونه او هرڅه به یې په امن وي او امیر المؤمنین وربانديې دا شرط کړه چې دوی به دلته یهودو ته ځای نه ورکوي او تړون یې ورسره وکولو او د اسلامي لښکر قائدین یې وربانديې ګواهان کړل .[1]

## د بیت المقدس فتح

وروسته لدې چې مسلمانو لښکرو په یرموک کې فتح تر لاسه کړه او الله د کامیابي په خوندور نعمت سر لوړي کړل حضرت ابو عبیدة چې پدې وخت کې د مسلمانانو لښکرو امیر وو حضرت خالد بن ولید ته یې امر وکولو چې په رومیانو پسې له شا روان شي او له علاقې نه دا کرغېړن خلک وباسي او ټولې علاقې تر مقدسه کلمه لاندې راولي حضرت خالد بن ولید ور پسې شو تردې چې د حمص علاقې ته ورسېدو او په ټولو ځایونو کې الله ورته د فتح نعمت ورکولو او کامیابي یې په برخه کېده حضرت ابو عبیدة خپل لښکر له ځان سره ملګرى کړو او دمشق ته لاړو .

حضرت ابو عبیدة د شام منطقه په څلورو برخو تقسیم کړه :

الف : دمشق او د هغې شاوخوا یزید بن ابي سفیان یې ور باندې امیر کړو

ب : د فلسطین علاقه حضرت عمرو بن العاص یې وربانديې امیر کړو .

[1] البدایة و النهایة

ج: د اردن علاقه حضرت شرحبیل بن حسنة یې وربانديې امیر کړو .

د : حمص او شاوخوا علاقه تر خپل امارت لاندې یې وساتله .

حضرت خالد یې له ځان سره د حمص علاقې ته بوتلو ځکه د شام پاتې شمالي برخه لا نه وه فتح شوې ..

دې پورتنیو ټولو امیرانو ته وظیفه ورکړل شوې وه چې هر امیر به خپله ساحه د رومیانو او د هغوی له اتباعو څخه پاکوي او خلک به تر یوې مقدسې کلمې لاندې جمع کوي پدې لړۍ کې اسلامي لښکر بیت المقدس ته ورسېد او دا ښار یې محاصره کړو او د ایلیاء (القدس) خلکو ته یې هم لیک ور ولېږلو یا اسلام قبول کړئ یا اسلامي حکومت ته جزیه ورکړئ او یا جنګ ته تیار شئ هغوی تسلیم کېدلو او صلح ته تیار شول خو هغوی وویل : زمونږ په کتابونو کې د هغه مسلمان څه صفتونه شته چې له مونږ نه به د بیت المقدس کلیانې اخلي د مثال په توګه ځینې جسمي صفات یې یاد کړل او دا یې وویل چې د هغه نوم به له دریو حرفونو څخه جوړ وي مسلمانانو چې فکر وکاوه هغه ټول صفات په امیر المؤمنین کې موجود وو نو حضرت عمر بن الخطاب له مدینې منورې نه بیت المقدس ته ددې لپاره روان شو چې هلته اسلامي خلافت قائم کړي او له هغه خلکو نه د بیت المقدس کلیانې واخلي حضرت عمر بن الخطاب د بیت المقدس په سفر روان شو او حضرت علي یې په مدینه منوره کې د خپل ځان په ځای پرېښود او په تلو کې یې د صحابه وو سره مشوره وکوله د حضرت عثمان رایه دا وه چې دی د نه ورځي بل څوک د ور ولېږي او د حضرت علي رایه دا وه چې لاړ د شي بیا یې د حضرت علي رایه خوښه شوه او په هغه یې عمل وکولو

او دا چې حضرت عمر ددې وجې نه راغلو او که نه د يو بل روايت له مخې چې کله حضرت ابو عبيدة د بيت المقدس د فتح سختېدل وليدل نو د حضرت عمر نه يې وغوښتل چې دی د پخپله راشي خو په هر صورت دی مبارک د يو غلام سره پدې سفر او د يو ضعيف روايت له مخې د يوې سپرلۍ سره روان شو (دا قصه په اکثرو معتمدو تاريخونو کې نشته) خو بيا هم مشهوره ده چې ده او غلام به يې په يوه سپرلي باندې نمبر په نمبر سفر کاوه (دا قصه عجيبه ځکه ښکاره کيږي چې پدې وخت کې اسلام دومره غريب نه وو د فارس فتح شوې وه او په شام کې مسلمانانو زيات فتوحات کړي وو او د سپرلۍ او هېڅ شی کمی نه وو خو په هر صورت) دوی به همداسې نمبر په نمبر په سپرلي باندې سفر کاوه چې بيت المقدس ته اسلامي لښکر ته را نېږدې شول لښکر او ځينې د بيت المقدس خلکو چې د دوی د راتلو انتظار يې کاوه دوی وليدل او پدې وخت کې د غلام د سپرلي نمبر وو او امير المؤمنين په پښو ورسره روان وو خلکو فکر کاوه چې په سپرلي سپور امير المؤمنين دی بيا مسلمانانو ورته وويل : نه امير المؤمنين هغه دی چې په پښو روان دی په همدې ډول بيت المقدس ښار ته ننوتلو .

پدې ځای کې يو بل روايت هم شته چې کله حضرت ابو عبيدة بن الجراح امير المؤمنين پدې حالت کې وليد چې زړې جامې يې په ځان وې نو مخې ته ورته راغلو ورته يې وويل : يا امير المؤمنين الله تاسې ته ډير لوی عزت درکړ ی دی ته اوس پدې شکل باندې داسې ښار ته داخلېږې چې هلته خلک ستا د ليدلو انتظار کوي تا داسې جامې آغوستلي دي چې د امير المؤمنين د شان سره نه ښايي مخکې لدې چې ښار ته ننوزې دا جامې به مونږ درته بدلې کړو او دا هيئت د سفر به درته سم کړو حضرت امير المؤمنين په سينه

کې په لاس ووهلو ورته یې وویل : دا خبره به بل چا کړې وه ای ابا عبیدة بېشکه تاسې ذلیل سپک او حقیر خلک وئ ، ډېر کم وئ الله تاسې ته په اسلام باندې عزت درکړو کله هم چې تاسې عزت بغیر د اسلام نه په بل څه کې غواړئ الله به تاسې ذلیل کوي .

یعني مسلمانانو ته دا عزت بس دی چې دوی مسلمانان دي په ظاهري جامه او لباس باندې د ځان ښائسته کولو ضرورت نشته .

حضرت عمر راساً بیت المقدس ته ورننغلو بلکه الجابیة ځای ته ورغلو هلته یې مسلمانان استقبال ته تیار وو حضرت ابو عبیدة بن الجراح ، خالد بن ولید ، یزید بن ابي سفیان ورسره وو دده یې دروند استقبال وکولو حضرت ابو عبیدة کوښښ وکولو چې د حضرت عمر لاس ور مچي کړي او حضرت عمر کوښښ وکولو چې د حضرت ابو عبیدة لاس ور مچي کړي هغه هم ترې خپل لاس منع کړو او ده هم ترې خپل لاس منع کړو .[1]

او همدلته په جابیة کې حضرت عمر اسلامي لښکرو ته یوه اوږده خطبه وویله او په همدې خطبه کې یې وفرمایل : **أيها الناسُ أصلحوا سرائركم تَصلُحْ علانيتكم، واعملوا لآخرتكم تُكْفَوْا أَمْرَ دنياكم.**

ترجمة : اې خلکو خپل پټ سم کړئ الله به ستاسې ښکاره حالتونه درته سم کړي او د خپل آخرت لپاره کار وکوئ الله به ستاسې د دنیا کارونه درته پوره کړي .

د بیت المقدس موجوده والي هم الجابیة ته ورته راغلو او دلته حضرت عمر العهدة العمرية (عمري تړون) ولیکلو او دواړو ډلو وربانديې

---

[1] **تاريخ الطبري**

لاسليكونه وكول او په هغه تړون کې داسې ليکلي وو :

"بِسْمِ اللهِ الرّحْمَنِ الرّحيمِ، هذا ما أعطى عبد الله عمر أمير المؤمنين أهل إيلياء من الأمان -وإيلياء هي القدس- أعطاهم أمانًا لأنفسهم وأموالهم، ولكنائسهم وصلبانهم، وسقيمها وبريئها وسائر ملتها، أنه لا تسكن كنائسهم ولا تهدم، ولا ينتقص منها ولا من حيزها، ولا من صليبهم، ولا من شيء من أموالهم، ولا يُكرَهون على دينهم، ولا يُضَارّ أحدٌ منهم، ولا يسكن بإيلياء معهم أحد من اليهود، وعلى أهل إيلياء أن يعطوا الجزية كما يعطي أهل المدائن، وعليهم أن يخرِجُوا منها الروم، ومن أحب من أهل إيلياء أن يسير بنفسه وماله مع الروم ويخلي بيعهم وصُلُبَهم فإنهم آمنون على أنفسهم وعلى بيعهم وصلبهم حتى يبلغوا أمنهم، ومن أقام منهم فعليه مثل ما على أهل إيلياء، ومن شاء أن يسير مع الروم، سار مع الروم وهو آمن، ومن شاء أن يرجع إلى أهله، رجع إلى أهله، وهو آمن، وعلى ما في هذا الكتاب عهد الله وذمة رسوله وذمة الخلفاء وذمة المؤمنين إذا أعطوا الذي عليهم من الجزية، شهد على ذلك خالد بن الوليد، وعمرو بن العاص، وعبد الرحمن بن عوف، ومعاوية بن أبي سفيان وكُتِبَ وحُضِرَ سنة خمس عشرة".

ترجمة : د الله په نوم شروع کوم چې مهربان او رحم لرونکی دی دا هغه څه دي چې د الله بنده امير المؤمنين يې د ايلياء خلکو ته د امان په ډول ورکوي او ايلياء القدس دی مونږ دوی ته د دوی د ځانونو او ددوی د مالونو امان ورکړی دی او د دی د عبادت د ځايونو او د دوی د مجرم او پاک د ټول ملت لپاره مونږ امان ورکړو د دوی د عبادت په ځايونو کې به نه څوک اوسيږي او نه به يې څوک ورانوي او نه به ورڅخه کمول کيږي او نه به تنګول کيږي او نه به د دوی صليب ورانيږي او نه به د دوی له مالونو څه شی اخيستل کيږي ، اود دين په اړه به په دوی باندې څه زور نه راوستل کيږي ، او دوی ته به ضرر نه رسيږي ، او له دوی سره به دلته په قدس کې يهود نه اوسيږي (دا د مسلمانانو تقاضا هم

وه او د دوی هم له یهودو نه سخت نفرت وو او د وی هم له مسلمانانو څخه غوښتل چې له دوی سره دې په بیت المقدس کې یهود نه اچوي) لکه د مدائن خلک چې څنګه جزیه ورکوي داسې به د بیت المقدس خلک هم جزیه ورکوي دوی به له بیت المقدس نه د روم خلک وباسي او که څوک له رومیانو سره تلل غواړي او دا ځای پرېږدي هغوی ته هم امان دی هغوی ورسره تللی شي او که څوک دلته پاتې کیږي نو په دوی باندې هغه جزیه ده کومه چې په اهل الیاء باندې ده او که څوک له رومیانو سره ځي نو ورسره لاړ د شي له اسلامي لښکرو څخه په امن کې دي او که څوک بېرته را ګرځېدل غواړي نو را تلی شي په امن کې به وي او هغه څه چې پدې لیک کې دي د الله عهد دی پکې او د رسول الله ذمه ده او د خلفاوو ذمه ده او د مؤمنانو ذمه ده ترڅو چې دوی هغه جزیه ورکوي چې په دوی مقرره شوې ده او پدې باندې حضرت خالد بن ولید ، عمرو بن العاص ، عبد الرحمن بن عوف، معاویة بن ابي سفیان ګواهان دي او دا لیک د هجرت په پنځلسم کال ولیکل شو .

او پدې مجلس کې د بیت المقدس کلیانې حضرت امیر المؤمنین ته حواله شوې مسلمانان ډېر زیات په شوق کې وو چې دوی بیت المقدس ته ننوزي او هغه ځای ووینې چې له کلونو یې د لیدلو شوق وو کوم ځای ته چې رسول الله د شپې راوستل شوی وو نو د همدې جذبې سره اسلامي لښکرې بیت المقدس ته ننوتل او د بیت المقدس فتح پوره شوه .

دا لمړی ځل وو او دوهم ځل بیا صلاح الدین ایوبي په کال ۵۸۳ هجري کې چې د ۱۱۸۷ میلادي سره سمون خوري فتح کړه او انشاء الله دریم ځل به هم فتح کیږي د کوم ځل په اړه چې رسول الله فرمایلي دي چې کاڼي او بوټي به وایي : **یا مسلم،**

**يا عبدالله، هذا يهودي ورائي، تعالی فاقتله** (اې مسلمانه اې عبد الله دا يهودي زما تر شا دی راشه قتل يې کړه) .

# ٦. د مسلمانانو په خپل مينځ کې د جنګ فتنه

فتنه په لغت کې ابتلاء امتحان ته ويل کيږي عرب وايي : **فتنت الفضة والذهب إذا أذبتها بالنار؛ لتُمَيِّز الرديء من الجيد** .[1] ( ما سره او سپين زر فتنه کړل او دا خبره دوی هغه وخت کوي چې په اور سره يې ويلي کړي ترڅو اصل او کم اصل پکې معلوم کړي) .

او په اصطلاح کې فتنه هغه څه ته وايي چې د کوم انسان ښه او بد سره معلوم کړي او دا فتنې او دا امتحانونه الله هروخت په انسانانو باندې راولي الله فرمايي : **أَحَسِبَ النَّاسُ أَن يُتْرَكُوا أَن يَقُولُوا آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ * وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ .**[2]

ترجمة : آيا خلک دا ګمان کوي چې دوی ووايي مونږ ايمان راوړی دی دوی به پرېښودل شي او په دوی به امتحان نه راځي؟ په تحقيق سره هغه کسان چې له دوی نه وړاندې يې ايمان راوړی وو هغه موږ امتحان کړل ترڅو معلوم کړي هغه کسان چې په رښتيا يې ايمان راوړی دی او هغه کسان معلوم کړي چې درواغزن دي .

رسول الله فرمايلي دي چې د فتنو زياتېدل او د مسلمانانو په مينځ کې د قتلونو زياتېدل د قيامت له نښو څخه دي حضرت ابو هريره د رسول الله يو حديث نقل کړی دی چې هغه **فرمايل لا تقوم**

---

[1] **لسان العرب**
[2] **سورة العنكبوت آية ٢ او ٣**

**السَّاعَة حتى يُقبَض العلم** او بيا يې په يو ځای کې وفرمايل **وتظهر الفتن، ويكثر الهَرْج - وهو: القتل القتل** .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو علم قبض نه شي ...... او فتنې را ښکاره نه شي او هرج زيات نه شي او هرج قتل دی قتل .

همداسې لکه چې رسول ﷲ چې خبر ورکړی وو د حضرت عثمان د شهادت نه وروسته د مسلمانانو په مينځ کې فتنې را پيدا شوې او د مسلمانانو په مينځ کې لوی جنګ وشو او ډېر زيات کسان پکې ووژل شول .

حضرت عائشه فرمايي : کله چې رسول ﷲ سخت بيمار وو (له کومې بيمارۍ نه چې وفات شو) ويې ويل : کاش ځينې صحابه مې لما سره وای مطلب يې حضرت عثمان وو مخکې بې بي قصه کوي او فرمايي رسول ﷲ وفرمايل : **وددتُ أن عندي بعض أصحابي، قلنا: يا رسول الله، ألا ندعو لك أبا بكر؟ فسكت، قلنا: ألا ندعو لك عمر؟ فسكت، قلنا: يا رسول الله، ألا ندعو لك عثمان؟ قال: نعم، فجاء؛ فخلا به، فجعل النبي صلى الله عليه وسلم يُكلِّمه ووجه عثمان يتغيَّر، قال قيس: فحدثني أبو سهلة مولى عثمان بن عفان أن عثمان قال يوم الدار: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم عَهِدَ إليَّ عهداً فأنا صائر إليه" - وفي رواية: "وأنا صابر عليه -، قال قيس: فكانوا يرونه ذلك اليوم."**

ترجمة : زما زړه غواړي چې زما سره مې څه صحابه وای مونږ ورته وويل يا رسول ﷲ ابو بکر درته را ونه غواړو؟ هغه چُپ شو ، بيا مونږ ورته وويل : عمر درته را ونه غواړو؟ دی مبارک بيا چُپ شو مونږ ورته وويل : عثمان درته را ونه غواړو؟ ده وويل : هو حضرت عثان راغلو او له رسول ﷲ سره يوازې شو خبرې يې

---

[1] **صحيح البخاري**

ورسره کولې او د خبرو په دوران کې به د حضرت عثمان رنګ بدلېدو را بدلېدو قیس فرمایي بیا ماته ابو سهلة د عثمان یو غلام قصه وکوله چې ده مبارک په هغه ورځ کې وویل چې دده کور محاصره کړل شوی وو رسول ﷲ لما سره یو عهد کړی وو زه هغه ته ورځم او یا یې وویل چې زه په هغه باندې صبر کوم .[1]

حضرت عثمان تر آخري سلګۍ پورې پوره صبر ددې لپاره وکولو چې نه یې غوښتل چې دده له امله د مسلمانانو ډلو په مینځ کې جنګ جوړ شي حضرت ابو هریره فرمایي چې زه هم د حضرت عثمان سره په کور کې محاصره وم او له محاصره شویو کسانو څخه یو کس هغوی ووژلو زه ورغلم ورته مې وویل : اوس خو جنګ شروع شو دوی له مونږ نه یو کس ووژل شو ده مبارک ماته خپل قسم راکړو او ماته یې ویل چې زه نه غواړم چې مسلمانان یو بل سره ووژني بیا په هغه وخت کې ما دده په امر باندې توره چېرته لرې وار کړه اوس هم نه یم خبر چې زما توره به چېرته وي .

همدارنګه د صحابه کرامو ځوانان زامن حضرت عثمان ته راغلل ورته یې وویل : یا امیر المؤمنین اجازه وکوه چې مونږ له دوی سره جنګ وکوو دوی هېڅ هم نه دي لکن ده مبارک ورته د جنګ اجازه نه کوله او څرنګه چې دی امیر المؤمنین وو ټول مسلمانان دده د امر تابعدار وو او ده بیا بیا دا امر کولو چې که زما خبره څوک مني او زما اطاعت کوي نو هغه به جنګ نه کوي .

تردې چې آخر یې خپله قرباني ورکړه او صبر یې وکولو لکن جنګ یې شروع نه کړو سره ددې چې کله دی په شهادت ورسېدو لویې لویې فتنې را مینځ

---

[1] **سنن ابن ماجة**

ته شوې او ډېر قتلونه وشوله لکن دی مبارک د خپل صبر په برکت لدې ټولو خبرو څخه پاک پاتې شو او دې مبارک ددې لامل نه شو چې جنګ شروع شي .

د حضرت عثمان په شهادت مسلمانان ډېر زيات خفه شول په مدينه منوره کې صحابه وو او نورو مسلمانانو له حضرت علي سره بيعت وکولو او هغه يې د خپل امير په توګه مقرر کړو لکن ځينې خلک ورڅخه شام ته لاړل او د حضرت علي سره يې بيعت ونه کولو دمشق ته چې د حضرت عثمان د شهادت خبر او د هغه مبارک په وينه باندې لړلی قميص ورسېدو خلک وربانديې ډېر زيات خفه شول حضرت معاوية هلته خلکو ته په منبر باندې ښکاره کړو او ډېرو زياتو خلکو ورته ډېر سخت سخت وژړل او دلته يې تعهد وکولو چې ترڅو دده د وينې بدل وانخلي په قرار نه کينې او دا شپېته زره کسان وو حضرت عائشه هم په اوښ سپره شوه او له مسلمانانو سره را ووتله او د حضرت عثمان د شهادت بدل يې غوښت حضرت طلحة حضرت زبير او نور مسلمانان ورسره وو او دلته د حضرت علي او د حضرت معاوية چې دواړه ډلې د مسلمانانو وې جنګ وشو چې دېته واقعة الجمل ويل کيږي او په زرګونو مسلمانان له دواړو طرفونو څخه ووژل شول او د رسول الله پيشګويي رښتيا شوه او داسې صحابه کرام هم وو چې کله د واقعة الجمل خبرې رواني وې دوی له سر نه پدې کې د شرکت کولو نه انکار وکولو لکه حضرت سعد بن ابي وقاص، سعيد بن زيد ، زيد بن ثابت ، محمد بن مسلمة، عبد الله بن عمر ، اسامة بن زيد ، صهيب الرومي ، ابو موسى الاشعري او لدوی سره نور هم څه مبارک صحابه کرام وو دوی وويل : **إذا كان غزو الكفار قاتلنا** (کله چې له کفارو سره جنګ وي بيا

مونږ جنګ کوو) او اوس خو دواړه لوري مسلمانان وو دواړه طرفونو په اجتهاد ولاړ وو هر يو دا ويل چې حق زمونږ سره دی نو ځکه په خپل استقامت او په خپل دريځ ټينګ ولاړ وو حتی چې جنګ ته هم تيار وو .

او د همدې واقعې په اړه رسول الله ﷺ مخکې هم خبره کړې وه رسول الله ﷺ فرمايلي وو : **لا تقوم السَّاعَة حتى تقتتل فئتان عظيمتان، يكون بينهما مقتلة عظيمة، ودعواهما واحدة**[1] .

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي چې ترڅو دوه لويې ډلې سره جنګ ونه کوي د دوی په مينځ کې به لوی جنګ کيږي او د دوی دواړو دعوا به يوه وي .

[1] صحيح البخاري

## ۷. د خوارجو را ښكاره كېدل

د قيامت له نښو څخه يوه دا هم ده چې يوه ډله به را ښكاره شي چې د رسول الله له لارې به مكمله بدله وي او د صحابه كرامو د لارې څخه به بې لارې وي ددې ډلې له راوتلو څخه رسول الله مخكې خبر وركړى وو حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي رسول الله فرمايل : **يخرج آخر الزمان قوم أحداث الأسنان، سفهاء الأحلام، يقرؤون القرآن لا يجاوز تراقيهم، يقولون من قول خير البرية، يمرقون من الدين كما يمرق السهم من الرَّميَّة .** [1]

ترجمة : په آخره زمانه كې به يوه ډله خلك راوزي چې په عمر كې به كشران وي او عقلونه به يې كمزوري وي (كم عقل به وي) تلاوت به كوي او نه به وربانددې پوهيږي او نه به پرې عمل كوي د رسول الله د احاديثو روايت به كوي او له دين څخه به تښتي لرې به ورڅخه ځي .

يعني نه به په قرآن علم لري نه به پرې عمل كوي خبرې به د خير المخلوقات پيغمبر متابعت كوي او په عمل كې به له دين څخه ډېر لرې وي .

په يو بل حديث كې رسول الله د دوى همدارنګه صفات بيان كړي دي حضرت انس بن مالك فرمايي رسول الله فرمايل : **سيكون في أُمَّتِي اختلاف وفرقة، قوم يحسنون القيل، ويسيئون الفعل، يقرءون القرآن، لا يجاوز تراقيهم، يمرقون من الدين مروق السهم من الرَّميَّة، لا يرجعون حتى يرتدَّ السهم إلى فُوقه، وهم شرار الخلق والخليقة، طوبى لمَن قتلهم وقتلوه، يدعون إلى كتاب الله، وليسوا منه في شيء، مَن قاتلهم كان أولى بالله منهم، سيماهم التحالق** [2] .

---

[1] صحيح البخاري و مسلم
[2] رواه ابو داود

ترجمة : زما په امت کې به اختلاف او یوه فرقه را پیدا شي ، یو قوم به وي چې خبرې به ډېرې ښې کوي او عمل به یې بد وي ، قرآن به لولي نه به وربانديې پوهیږي او نه به وربانديې عمل کوي له دین نه به داسې وزي لکه غیشی چې له لیندې وزي دوی دین ته تر هغه وخته رجوع نه کوي ترڅو غیشی بېرته خپلې لیندې ته را ونه ګرځي (دوی بیرته نه راګرځي) دوی په ټول مخلوق کې بد مخلوق دی ، نېکبختي ده د هغه لپاره چې دوی مړه کړي او یا یې دوی مړ کړي دوی به د الله کتاب ته خلک ورغواړي او خپله به د کتاب الله نه په هېڅ کې هم نه وي او څوک چې له دوی سره جنګ وکوي د الله په وړاندې به هغه له دوی څخه غوره وي او د دوی نښه د سرونو خریل دي .

د دوی په اړه نور هم احادیث راغلي دي او دا د قیامت له نښو څخه بلل شوي دي او دوی اول ځل د صفین له جنګ وروسته را ښکاره شول د صفین جنګ لکه مخکې چې د جمل واقعه تېره شوه تر هغه وروسته واقع شو او لدې نه وروسته د شام او عراق خلک پدې رضا شول چې مشران صحابه به د دوی په مینځ کې فیصله وکوي کله چې حضرت علي کوفې ته لاړو هغوی دده له طاعت نه بهر شول او د کوفې سره نېږدې یوه کلي ته لاړل چې الحروراء یې ورته ویل او دوی ۱۸۰۰۰ کسان وو او د یو قول له مخې ۱٦۰۰۰ کسان وو حضرت علي د دوی سره د بحث کولو لپاره حضرت عبدالله ابن عباس ور ولېږلو حضرت عبد الله ابن عباس فرمایي : کله چې خوارج د حضرت علي له اطاعت نه ووتل او ددې اراده یې وه چې د حضرت علي سره جنګ وکوي یو کس به راتلو او امیر المؤمنین ته به یې ویل : دا خلک لتانه لاړل او ستا په ضد د جنګ تیاری کوي حضرت علي به ویل : پرېږده یې ترڅو چې دوی جنګ ونه کوي زه ورسره جنګ نه کوم یوه ورځ زه د ماسپښین د مانځه نه مخکې ورته

راغلم ورته مې وويل : يا امير المؤمنين دا مونځ لږ ورسته کړه زه دې خلکو ته ورځم خبرې ورسره کوم ده مبارک راته وويل : زه په تا باندې ډارېږم ما ورته وويل : نه هېڅکله نه زه يو داسې کس يم چې هېچا ته مې څه ضرر نه دى رسولى بيا ده ماته اجازه ورکړه چې هغوى ته ورشم ښکلې يماني جامه مې وغوسته په پښو لاړم او دوى ته ورغلم غرمه وه ما داسې تکليف برداشت کونکي خلک نه وو ليدلي په مخونو باندې يې د سجدې نښې وې ، سخت او زيږه لاسونه يې وو ، سخت او زيږ قميصونه يې آغوستي وو ، په مخونو يې د بې خوبي نښې ښکاره کېدلې ما ورباندې سلام واچولو دوى راته ښه ستړي مشي وويله بيا يې راته وويل : څه شي را وستلې؟ ما ورته وويل : زه د مهاجرينو او انصارو له خوا تاسې ته راغلى يم او د رسول الله د زوم لخوا راغلى يم په کومو خلکو باندې چې قرآن کريم نازل شوى دى او هغوى يې په معنى باندې ډېر ښه پوهيږي يوې ډلې په دوى کې وويل : د قريشو سره جنګ مه کوئ ځکه د دوى په اړه الله فرمايي : **بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ .** [1](ترجمة : بلکه هغوى جنجالي خلک دي) دوو او دريو پکې وويل مونږ له دوى سره خبرې کوو ما ورته وويل : ماته هغه څه راکړئ او ووايئ چې په کوم شي سره تاسې د رسول الله له زوم نه خفه شوي ياست او تاسې د ټولو مهاجرينو او انصارو صحابه وو څخه خفه شوي ياست دوى وويل : درى شيان دي .. ما ورته وويل : ماته ووايإست ..

دوى وويل : يو دا چې کله چې دده له حضرت معاوية سره جنګ وو نو له هغه سره يې فيصله وکوله چې د دوى په مينځ کې به څه کسان صحابه فيصله وکوي دا حکم يې سړيو ته ولې پرېښود او

[1] سورة الزخرف آية ٥٨

ﷲ خو وايي إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلّهِ (فيصله به يوازې ﷲ کوي) چېرته انسانان او چېرته د نورو انسانانو په مينځ کې فيصله کول ..؟

ما ورته وويل ښه دا يو او دوهم؟

دوی وويل : دوهم دا چې ده د معاويه له کسانو سره جنګ وکولو نه يې بنديان راوستل او نه يې غنميت ونيولو که چېرته هغوی مسلمانان وو نو ولې يې ورسره جنګ کاوه او که چېرته د هغوی سره مونږ ته جنګ کول روا وو نو بيا ولې غنيمت نه وو روا؟

ما ورته وويل ښه دريم ؟

دوی وويل : په صلح کې دی پدې فيصله باندې رضا شو چې له خپل ځانه يې د امير المؤمنين لقب لرې کړو نو چې دی امر المؤمنين پاتې نشو نو اميرالکافرين شو .

ما ورته وويل : ددې دريو څخه علاوه نور څه شته؟ دوی وويل نه بس دا دری اعتراضونه دي .

ما ورته وويل : دا چې هغه حکم انسانانو ته حواله کړو پدې به زه آيت درته ووايم چې صحيح کار يې کړی دی که زه درته آيت ووايم نو تاسې بيا زما سره خبره منئ او بيرته د حضرت علي اطاعت ته ورګرځئ؟ دوی وويل هو ..

ما ورته وويل : کله چې انسان په احرام کې وي او هغه ښکار مړ کړي د هغه په اړه ﷲ فرمايي : لاَ تَقْتُلُواْ الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمِّداً فَجَزَاء مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ .[1]

ترجمة : مه وژنئ ښکار پداسې حالت کې چې تاسې په احرام کې وئ او که چا قصداً مړ کړو نو کوم

[1] سورة المائدة آية ٩٥

شی یې چې وژلی وي د هغه په اندازه به فدیه ورکوي او پدې به فیصله کوي دوه عادلان کسان .

همدارنګه کله چې د ښځې او خاوند په مینځ کې لانجه شي نو الله فرمايي : **وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُواْ حَكَماً مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَماً مِّنْ أَهْلِهَا .** [1]

ترجمة : او که تاسې وډار شوئ چې د دوی په مینځ کې به جدايي راشي نو يو حاکم د هغه له اهل نه او يوحاکم د هغې له اهل نه .

نو تاسې ماته دا ووایاست چې د يو ښکار د يوې سويې مرګ ډېره لويه خبره ده چې الله حکم کړی دی چې هلته د حاکمان فيصله وکوي چې قيمت يې څومره دی او که نه دا مسئله ډېره مهمه ده چې د مؤمنانو ويني پکې توئيږي ستاسې د قسم وي چې دا راته ووایاست چې د يو سړي او د هغه د ښځې په مینځ کې فيصله کول ډېر ضروري دي او که نه د زرګونو مؤمنانو په مینځ کې؟ دوی راته وويل : نه د زرګونو مؤمنانو په مینځ کې فيصله کول ضروري دي نو ما ورته وويل هلته الله حکم کړی چې حاکمان مقرر کړی چې مسئله همواره کړي نو چې هلته يې کولی شي دلته يې خامخا کولی شي او دلته ورته ډېر ضرورت دی ...

ما ورته وويل د اولې ځواب مو وشو؟ دوی وويل هو وشو .

بيا ما ورته وويل : تاسې چې واياست جنګ وشو او غنيمت رانغلو او بنديان مو ترې ونه نيول چې هغه زمونږ وينزې او غلامان شوي وی نو تاسې ماته دا ووایاست چې په هغه لوري کې حضرت عائشه هم وه تاسې دا غوښتل چې هغه تاسې نيولې وای او د وينزې په شکل کې مو راوستلې وای؟ اوس که تاسې واياست چې هغه زمونږ مور نه

---

[1] سورة النساء آية ٣٥

ده نو له اسلام نه ووتئ ځکه الله هغې ته ام المؤمنين ويلي دي او که چېرته دا واياست چې تاسې ته روا وو چې هغه مو را وستلې واى او هغه څه له دې سره حلال وو کوم چې له نورو بنديانو سره وي نو تاسې له اسلام نه ووتلى ځکه الله فرمايي : **النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ .** [1]

ترجمة : او نبي مسلمانانو ته د دوى د ځانونو نه اولى او نيږدى او د نبي مېرمنې د دوى موراني دي .

بيا مې ورته وويل د دوهمې خبرې ځواب مو وشو؟

دوى وويل : هو

بيا ما ورته وويل : تاسې چې واياست له ځانه يې د امير المؤمنين لقب لرې کړو نو دى اوس امير المؤمنين پاتې نشو نو زه تاسې ته وايم چې کله رسول الله د الحديبية په ورځ د مشرکينو ابا سفيان بن حرب او سهيل بن عمرو سره صلح کوله نو حضرت علي د دوى لپاره ليکل وکول او وېې ليکل (دا هغه څه دي چې محمد رسول الله **صلى الله عليه وسلم** ورباندې صلح کوي) نو مشرکينو وويل : و الله مونږ دا نه منو چې ته رسول الله يې او که مونږ پدې پوهېدلى او دا مو منلى نو بيا مو لتا سره جنګ ولې کولو بيا رسول الله حضرت علي ته وويل : دا لرې کړه او داسې وليکه چې دا هغه څه دي چې محمد بن عبد الله ....

حضرت علي وويل : يو ځل چې زما په قلم داسې ليکل شوي دي و الله که يې زه ترې لرې کړم بيا رسول الله سره ددې چې امي وو او ليکل يې نشواى کولى او نه يې لوستل کولى شواى د معجزې په

[1] سورة الاحزاب آية ٦

ډول رسول الله لفظ لرې کړو او بن عبد الله يې ولیکل نو آیا هغه ددې لفظ د لرې کولو نه وروسته بیا رسول الله پاتې نه شو؟

ددې مناظرې په برکت دوه زره کسانو ترېنه توبه وویسته او هغوی قانع شول پاتې نور یې په خپل ضد کې پاتې شول او جنګ ته تیار شول او جنګ یې وکولو .

## د خوارجو عقیده :

الف : په لویه ګناه باندې انسان کافر کیږي لکه زنا کول د شرابو څښل او داسې نور او دا به په اور کې همېشه وي او دا مکمله ګمراهي ده بلکه صحیح خبره داده چې دا لوی ګناهونه دي په کولو سره یې انسان ګناهکار کیږي په انسان باندې لازم دي چې توبه وباسي او الله ته مخ کړي او بیا د نه کولو عزم وکوي او له الله نه د خپلې ګناه لپاره بښنه وغواړي .

ب : حضرت علي ، حضرت معاویة او ګڼ شمېر نور صحابه کرام چې دا فیصله یې کړې وه چې د دوی دواړو په مینځ کې دې صحابه کرام فیصله وکوي او صلح به وشي نو هغوی ټولو ته کافران وایي .

ج: هغه حاکمان چې ګناه وکوي دوی وربانديې را وتل او له هغوی نه بغاوت کول روا بولي اګر که هغه کافران هم نه وي .

نو څنګه چې رسول الله د دوی په اړه ویلي دي بد خلک دي ، جاهلان دي ، تنګ دماغونه یې دي او هر مسلمان چې د دوی له رایې څخه بدل وي مرګ یې دوی روا بولي او جنګ ورسره کوي او روا یې ګڼي حضرت عبد الله بن خباب بن الارت یې په شهادت ورسولو کله چې حضرت علي ورڅخه پوښتنه وکوله دا چا ووژلو دوی وویل : دا مونږ ټولو په شریکه ووژلو حضرت علي یې جنګ ته ځان تیار

کړو او په النهروان ځای کې ورسره په جنګ مخامخ شو او په ټول تاریخ کې یې د ډېر شرم نه ډکه ماتې ورکړه نو د دوی دا وتل د قیامت له نښو او د رسول ﷺ د معجزانه پیشګویانو له قبیلې څخه وو چې الله رښتیا کړل.

## ۸. د حجاز له زمکې نه اور پورته کېدل

د قیامت بله نښه د هغه طبعي حوادثو واقع کېدل دي چې رسول ﷺ یې مخکې پیشګویي کړې وه او دا یې ویلي وو چې دا به له رسول ﷺ څخه وروسته واقع کیږي حضرت ابو هریره فرمایي رسول ﷺ فرمایل : **لا تقوم السَّاعَة حتى تخرج نارٌ من أرض الحجاز، تضيء لها أعناق الإبل ببصرى .** [1]

ترجمة : تر هغه وخته پورې قیامت نه واقع کیږي ترڅو یو اور د حجاز له زمکې څخه را ونه وزي داسې اور چې د بصرى ښار کې یې رڼا د اوښانو په غاړو ولګیږي یعني رڼا یې د بصرى ښار ته ورسیږي او د بصرى د ښار په اړه امام نووي فرمایي : بصرى یومشهور ښار دی په شام کې چې ورته حوران ویل کیږي او پدې وخت کې د سوریې په حصه کې ده او له مدینې منورې څخه ۹۸۵ کیلو متره لرې ده . [2]

په بل حدیث کې حضرت عمر بن الخطاب فرمایي : **لا تقوم السَّاعَة حتى يسيل وادٍ من أودية الحجاز بالنار، تضيء له أعناق الإبل ببُصرى.** [3]

---

[1] رواه البخاري و مسلم

[2] امام نووي في شرحه على مسلم

[3] ابن عدي فی الکامل

ترجمة : تر هغه وخته پورې قيامت نه راځي ترڅو و بهيږي يوه دښته د حجاز له دښتو څخه په اور سره داسې اور به وي چې په بصرى کې د اوښانو په غاړو ولګيږي (يعني بصرى ښار ته يې رڼا ورسيږي او د بصرى تعريف لږ وړاندې تېر شو) .

دا نښه هم واقع شويده

د علم تاريخ علماوو پدې خبره تصريح کړېده چې دا نښه هم په ٦٥٤ هجري کال کې يعني د ١٢٥٦ د مئ د مياشتې په ٢٩ د مديني منورې په شرقي لوري کې واقع شوه چې د يوې مرحلې په اندازه له مديني منورې څخه لرې وه او امام نووي د هغه اور په اړه فرمايي : **فقد أضاءت أعناق الإبل ببصرى، وكان طلبة العلم يقرءون على ضوئها في كثير من البلاد النائية عن المدينة.** [1]

ترجمة : په تحقيق سره هغه اور په بصرى ښار کې (تفصيل يې لږ وړاندې تېر شو) د اوښانو غاړې رڼا کړې او طالبانو به يې په رڼا کې د مديني منورې په شاو خوا ښارونو کې سبقونه ويل .

د علم تاريخ علماء فرمايي دا اور له زمکې نه را پورته شو چې په عربي کې البركان ورته ويل کيږي او په فارسي کې ورته آتش فشان ويل کيږي مخکې لدې چې اور را پورته شي سپکې زلزلې وشوې شروع يې د يکشنبې په ورځ د مئ په ٢٥ مه په کال ١٢٥٦ کې وه او تر سه شنبې پورې اور زيات نه وو سپک وو او د چار شنبې په ورځ ډېر زيات شو او کله چې د جُمعې ورځ شوه نو په نيمه ورځ کې په هوا کې لوګی خپور شو او تياره يې جوړه کړه بيا اور نور هم خپور شو او رڼا يې دومره زياته شوه چې سترګې يې برېښولې او داسې ښکاره کېدو لکه د اور سيل چې روان وي او داسې اواز

---

[1] شرح النووي على مسلم

ورسره وو لکه د باران په وخت کې د برېښنا سره چې کوم اواز وي او د مدينې خلکو به ټولو له خپلو کورونو څخه ورته کتل .

امام ابن کثير فرمايي :

ماته قاضي صدر الدين الحنفي وويل هغه وويل ماته مې پلار صفی الدين وويل هغه په بصری کې په يوه مدرسه کې استاذ وو هغه وويل : چې متعددو کوچيانو ماته وويل چې په هغه شپه چې اور را پورته شو مونږ د اوښانو غاړې په هغه اور کې ولېدې چې پورته به يې نيولې وې .

همدارنګه ابن کثير فرمايي :

اور د حجاز له زمکې نه ښکاره شو او داسې اور وو چې په بصری کې د اوښانو غاړې ورته ښکاره شوې لکه په حديث کې چې راغلي وو او دا هم ويل شوي چې دا اور تر دريو مياشتو پورې دوام وکولو او داسې رڼا يې کوله چې د شپې به خلکو د هغې رڼا ته کار کولو .

د علم التاريخ ځينې علماء فرمايي دا اور د اوږده وخت لپاره پاتې شو او په دښته کې لکه سيل داسې بهېدو تردې چې په ۲۷ د رجب باندې ګل شو او د جمادي الثاني په دريم تاريخ شروع شوی وو .[1]

امام قرطبي ددې واقعې په اړه له أبي شامة څخه روايت کوي چې هغه ورته ددې واقعې قصه کړېده او فرمايي : لما كنت ليلة الأربعاء 3 جُمادى الآخرة سنة 654 ه، ظهر بالمدينة المنورة دوي عظيم، ثم زلزلة رجفت منها الأرض والحيطان والسقوف والأخشاب والأبواب، ساعة بعد ساعة إلى يوم الجمعة من الشهر المذكور ثم ظهرت نار عظيمة في الحرة ـ موضع في المدينة ـ قريبة من بنى قريظة، فبصرناها من دُورِنَا من داخل

---

[1] البداية و النهاية

المدينة، وكأنها عندنا نار عظيمة سالت أودية بالنار إلى وادي شظا مسيل الماء، وهي ترمي بشررٍ كالقصر. [1]

ترجمة : کله چې چهارشنبه وه د جمادي الثاني دريم په کال ٦٥٤ هجري کې په مدينه منوره کې يو لوی د تالندې اواز واورېدل شو بيا زلزله وشوه او زمکه ورسره وښورېده ، ديوالونه ، چتونه لرګي او دروازې ورسره ساعت په ساعت ښورېدل په همدې چهارشنبه پسې تر راتلونکې جُمعې پورې بيا په حرة نومي ځای کې چې په مدينه منوره کې دی لوی اور را ښکاره شو د بني قريظة د ځای سره نېږدې هغه مونږ په مدينه منوره کې د خپلو کورونو څخه وليد داسې وو لکه دا اور چې له مونږ سره وي او لوی اور چې په خوړونو کې بهيږي تر وادي شظا پورې چېرته چې اوبه بهېدلې او د هغه اور نه به داسې سپرميغې باديدل لکه بنګلې.

ددې واقعې نه علاوه امام نووي د يوې بلې واقعې روايت هم کړی دی هغه مبارک فرمايي :
**وقد خرجت في زماننا نار بالمدينة سنة أربع وخمسين وستمائة، وكانت نار عظيمة من جنب المدينة الشرقي وراء الحرة، تواتر العلم بخروجها** [2] .

ترجمة : په تحقيق سره زمونږ په زمانه کې هم په مدينه کې يو اور را پورته شو په کال ٩٥٤ کې او ډېر لوی اور وو د مدينې منورې په شرقي لوري کې د الحرة نه هاغه خوا ته او پدې باندې هرڅوک خبر دي .

## ٩. د قسطنطينية لمړی فتحه

---

1 **التذكرة للقرطبي**
2 **شرح مسلم للنووي**

دا چې قسطنطينية ښار به د مسلمانانو په لاس باندې فتح کيږي رسول الله د معجزانه پيش ګويي په ډول صحابه وو کرامو ته ددې زيرى هم ورکړى وو او او دايې هم د قيامت له راتلو مخکې د قيامت يوه نښه ګڼلې وه قسطنطينية د البيزنطيين ښار مرکز وو او دا ښار يو بادشاه جوړ کړى وو چې قسطنطين نوميدو بيا ددې ښار نسبت هم هماغه ته وشو او دېته مدينة قيصر هم ويل کيږي او همدارنګه رسول الله د الرومية نومي ښار د فتح زيرى هم صحابه وو ته ورکړى وو چې د ايټاليا مرکز دى .

حضرت امام احمد له حضرت ابي قبيل څخه روايت کړى دى هغه فرمايي مونږ له حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص سره ناست وو چا ورڅخه پوښتنه وکوله په القسطنطينية او الرومية کې کوم ښار مخکې فتح کيږي هغه مبارک يو صندوق را وغوښت بيا يې يو کتاب ور څخه را وويست بيا يې مونږ ته وويل کله چې مونږ له رسول الله سره په شاوخوا کې ناست وو ليکل مو کول يو کس ورڅخه پوښتنه وکوله چې پدې دوو ښارونو کې کوم يو وختي فتح کيږي القسطنطينية او که الرومية؟ رسول الله ورته وويل : د هِرقل ښار يعني القسطنطينية .[1]

له حضرت ام حرام بنت ملحان څخه روايت دى هغه مبارکه فرمايي رسول الله فرمايل : **أول جيش من أُمَّتِي يركبون البحر قد أوجبوا، وأول جيش من أُمَّتِي يغزون مدينة قيصر مغفور لهم.**[2]

ترجمة : زما د امت څخه اول لښکر چې په بحر کې به سپريږي هغوى ته جنت واجب شوى دى او زما د

---

[1] مسند امام احمد
[2] رواه البخاري

امت څخه اوله ډله چې د قیصر له ښار سره به جنګ کوي هغوی ته بښنه شوېده .

د قیامت دا نښه هم واقع شوېده

رسول الله پدې حدیث کې د دوی لپاره دا ونه ویل چې هغوی ته به مرسته ورکول کیږي او هغوی ته به فتحه ورکول کیږي بلکه د هغوی لپاره یې د جنت وعده وکوله او هغوی ته ئې د جنت زیری ورکړو نو مسلمانانو ددې زیري د اخیستلو لپاره هر وخت ډېر زیات کوښښ کاوه او ډېر به دېته لیواله وو چې ددې ښار په جنګ کې برخه واخلي نو د لمړي ځل لپاره مسلمانانو د حضرت معاویة د خلافت په وخت کې پدې ښار کوښښ وکولو او د دوی امیر یزید بن معاویة وو او پدې لښکر کې حضرت ابو ایوب الانصاري هم وو په همدې جنګ کې شهید شو او هماغلته دفن شو خو پدې کوششونو کې مسلمانانو ونشوای کولی دا ښار فتحه کړي بیا د عبد الملک بن مروان د خلافت په وخت کې مسلمانانو په دوهم ځل پدې ښار کوښښ وکولو پدې وخت کې د دوی امیر دده زوی مسیلمة وو او د ډېر زیات وخت لپاره یې محاصره کړو لکن ددې ښار فتح کول مسلمانانو ته اسان نه وو ځکه دوی ډېرې سختې قلا ګانې تر خپل ځان تاو کړې وې او ډېر سخت د ساتنې تدابیر یې جوړ کړي وو او هېڅ د ورتلو لاره نه وه او نه د هغه قلا ګانو د ماتولو څه چل جوړیدو مسلمانانو غوښتل چې په احادیثو کې یاد شوی شرف حاصل کړي چې په یو حدیث کې حضرت بشر الغنوي فرمایي رسول الله فرمایل : **لَتُفْتَحَن القسطنطينية، ولنعم الأمير أميرها، ولنعم الجيش ذلك الجيش** . [1]

---

[1] رواه الامام احمد

ترجمة : د القسطنطينية ښار به فتح كيږي هغه امير به غوره امير وي او هغه لښكر به غوره لښكر وي .

خو د ډيرو كوښښونو وروسته القسطنطينية ښار د عبد الملک بن مروان په وخت كې هم فتح نه شو بل ځل په كال ۸۵۷ هجري كې چې د ۱٤٥۳ ميلادي سره سمون خوري وربانديې مسلمانانو ورغلل د سلطان العثماني محمد الثاني تر قيادت لاندې چې ورته الفاتح ويل كيدل او د الله په نصرت سره يې فتح كړو او ده پخپله او دده لښكر هغه د رسول الله ياد كړل شوى شرف او عزت او زيرى يې واخيستل او نام يې وربانديې (اسلام بول) كيښود په تركي ژبه كې يعني د اسلام ښار او بيا وروسته استانبول شو ..

## ۱۰ . د مال زياتيدل

د قيامت له نښو څخه بل دادي چې مال به زيات شي او په دنيا كې به مالداران زيات شي او داسې وخت به راشي چې يو څوک به په غريب پسې ګرځي چې صدقه ورته وركړي رسول الله په يو اوږده حديث كې چې څو ځله مخكې تير شو حضرت عوف بن مالک ته وويل : تر قيامت وړاندې شپږ نښې شمار كړه او يوه نښه يې دا ورته وويل استفاضة **المال، حتى يُعْطَى الرجل مائة دينار فيظل ساخطاً** .[1]

ترجمة : د مال زيادت تردې چې يو څوک به چاته سل دينار وركوي خو هغه به بيا هم خفه وي پدې معنى چې لږ د راكړل .

[1] صحيح البخاري

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله فرمايل : لا تقوم السَّاعَة حتى يكثر فيكم المال، فيفيض حتى يُهِمَّ ربّ المال مَن يقبل منه صدقةً، ويُدعى إليه الرجل، فيقول: لا أَرَبَ لي فيه .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو په تاسې کې مال ډېر شي او زيات به شي تردې چې د مال خاوند به پداسې چا پسې ګرځي چل له ده څخه صدقه واخلي او يو کس ته به وايي دا صدقه واخله خو هغه به ورته وايي ضرورت مې ورته نشته .

په يو بل روايت کې حضرت ابو هريره فرمايي : لا تقوم السَّاعَة حتى يكثر فيكم المال ويفيض، وحتى يخرجَ الرجل بزكاة ماله، فلا يجدُ أحداً يقبلها منه.[2]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو مال زيات شي تردې چې يو کس به د خپل مال زکات وباسي خو داسې څوک به نشي پيدا کولی چې له ده څخه هغه زکات قبول کړي .

حضرت حارثه بن وهب فرمايي ما له رسول الله څخه واورېدل هغه فرمايل : تصدَّقوا، فسيأتي على الناس زمان يمشي الرجل بصدقته فلا يجد مَن يقبلها .[3]

ترجمة : صدقې کوئ داسې وخت به راشي يو سړی به د خپل مال صدقه ورکول غواړي خو داسې څوک به نشي پيدا کولی چې له ده څخه يې قبوله کړي .

په بل روايت کې حضرت ابو موسى الاشعري فرمايي رسول الله فرمايل : ليأتينَّ على الناس زمانٌ يطوف الرجل فيه بالصدقة من الذهب، ثم لا يجد أحداً يأخذها.[4]

---

[1] صحيح مسلم
[2] رواه البخاري و مسلم
[3] رواه البخاري و مسلم
[4] رواه مسلم

ترجمة : په خلکو به داسې وخت راشي چې يو کس به د سرو زرو صدقه ګرځوي داسې څوک به نشي پيدا کولی چې له ده څخه دا خيرات واخلي .

حضرت عدي بن حاتم فرمايي رسول الله ده ته وويل : **ولئن طالت بك حياة لَتَرَيَنَّ الرجلَ يخرجُ ملءَ كفِّهِ من ذَهَبٍ أو فِضَّة، يطلبُ مَن يقبله منه؛ فلا يجدُ أحداً يقبلُهُ منه** .[1]

ترجمة : که ستا عمر لږ اوږد شو داسې سړی به ووينې چې لاس به يې د سپينو او سرو زرو د خيرات څخه ډک وي داسې څوک به لټوي چې له ده څخه دا صدقه وخالي خو نه به يې شي پيدا کولی .

په بل روايت کې حضرت حارثة بن وهب فرمايي ما له رسول الله څخه واورېدل چې هغه فرمايل : **تصدَّقوا، فيوشك الرجل يمشي بصدقته، فيقول الذي أُعْطِيها: لو جئتنا بالأمس قبلتها، فأما الآن، فلا حاجة لي بها، فلا يجدُ مَن يقبلها.** رواه البخاري

ترجمة : صدقې کوئ زر ده چې داسې وخت به راشي چې يو کس به خپله صدقه را واخلي چاته يې چې ورکوي هغه به ورته وايي که د پرون راوړې وای ما به اخيستې وه لکن نن مې ورته حاجت نشته صدقه به يې په لاس کې وي داسې څوک به نشي پېدا کولی چې صدقه ورکړي .

## دا نښه هم واقع شويده

د علم تاريخ علماء فرمايي په هغه وخت کې چې صحابه کرام ژوندي وو او الله د مسلمانانو په لاس باندې فارس او روم او د شام علاقې فتح کړې نو مسلمانان ډېر زيات مالدار شول او بيا د حضرت عمر بن عبد العزيز په دور کې دا

---

[1] **رواه البخاري**

مالونه نور هم ډېر زيات شول يعقوب بن سفيان په خپل تاريخ کې د عمر بن اسيد بن عبد الرحمن بن زيد بن الخطاب نه نقل کړي دي هغه فرمايي : **والله ما مات عمر بن عبد العزيز حتى جعل الرجل يأتينا بالمال العظيم، فيقول: اجعلوا هذا حيث ترون في الفقراء، فما يبرح حتى يرجع بماله، يتذكر من يضعه فيهم، فلا يجد فيرجع به، قد أغنى عمرُ بن عبد العزيز الناسَ .** [1]

ترجمة : و الله عمر بن عبد العزيز تر خپل مرګ وړاندې خلک داسې مالدار کړل چې يو چا به لوی مال مونږ ته راوړو ويل به يې دا واخلئ چېرته چې تاسې ته مناسب ښکاره کيږي په غريبانو يې تقسيم کړئ هغه به نه کامياب کېدو يعنې داسې څوک به يې نشوای پيدا کولی چې له ده څخه يې مال اخيستی وای آخر به يې هغه مال بېرته له ځان سره يوړو څوک به يې ورته کتل چې وريې کړي خو نه يې شوای پيدا کولی حضرت عمر بن عبد العزيز خلک ټول داسې غنيان کړي وو .

علماء کرام فرمايي :

دا نښه به يو ځل بيا د مهدي په وخت کې هم را ښکاره شي د هغه په وخت کې به هم مال ډېر زيات شي او زمکه به خپل ټول برکات د زمکې سر ته کړي او د هغه خير او د هغه برکت نه به هرڅوک فايده پورته کولی شي لکه رسول الله چې په پورتني حديث کې وويل يو څوک به د سرو او سپينو زرو نه خپل لاسونه ډک ګرځوي او داسې څوک به نشي پيدا کولی چې خپله صدقه هغه ته ورکړي .

له حضرت سعيد الجريري نه روايت شوی دی له حضرت ابي نضرة نه روايت دی هغه فرمايي : **كنا جلوسا عند جابر رضي الله عنه، فقال: قال رسول الله صلى الله عليه**

---

[1] فتح الباري

وسلم: يكون في آخر أُمَّتِي خليفة يحثي المال حثياً لا يعدّه عدداً، قلت: - أي سعيد الجريري - لأبي نضرة وأبي العلاء: أتريان أنه عمر بن عبد العزيز؟، فقالا: لا .[1]

ترجمة : مونږ له رسول الله سره ناست وو رسول الله وفرمايل زما د امت په آخر کې به يو خليفه وي هغه به مال په حساب نه ورکوي بلکه داسې به يې چاته ور تويوي يعني ور اچوي سعيد الجريري وايي ما ابي نضرة او ابي العلاء ته وويل : دا خليفه حضرت عمر بن عبد العزيز دی؟ دوی وويل : نـــــــه

ددې حديث په تفسير کې امام ابن حجر ليکلي دي :

دا پداسې وخت کې واقع کيږي چې خلک له مال نه مستغني وي پدې وخت به فتنې زياتې وي هرڅوک به په خپل ځان آخته وي پدې وخت کې به د چا خپل اهل ته فام نه وي مال خو پرېږده او دا به د دجال زمانه وي او دا چې زيات د امن وخت به وي او خلک به په امن کې وي هغه د مهدي او د عيسى بن مريم وخت دی او په کوم وخت کې چې اور را بهر شي چې خلک د حشر خوا ته ور ټولوي پدې وخت کې به خلک د هېڅ شي غم نه کوي او يوازې د ځان غم به ورسره وي او پدې وخت کې که چا ته سره زر ورکول کيږي څوک به يې نه اخلي ځکه پدې سره انسان درنيږي او انسان به ځان سپک ساتي او د خپل ځان لپاره به د نجات په تالاش او لټون کې وي و الله اعلم .[2]

# ١١. د جزيې او خراج دريدل

جزيه او خراج څه ته وايي؟

[1] رواه مسلم
[2] فتح الباري

علماء فرمايي : **الجزية : مبلغ من المال يدفعه أهل الذمة مقابل حماية المسلمين لهم وعدم مشاركتهم في الجيش الإسلامي وهي تسقط بالإسلام وهي ثابتة بنص القرآن الكريم .**

ترجمة : جزيه يو عدد مال وو چې ذميان (هغه غير مسلم چې په اسلامي دولت کې تر يو قرارداد لاندې اوسيږي) مسلمانانو ته ددې امله ورکوي چې مسلمانان د دوی لپاره د امن کارونه کوي او د دوی لپاره د ژوند سهولتونه برابروي او دوی په اسلامي لښکر کې جنګ ته او د ملک نه دفاع ته او هېڅ بل کار ته نه ځي او کله چې اهل الذمة اسلام قبول کړي بيا ورځخه جزية نه اخيستل کيږي او جزية په قرآن سره ثابته ده .

د جزيې په اړه الله فرمايي : **قَاتِلُواْ الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَلاَ بِالْيَوْمِ الآخِرِ وَلاَ يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللّهُ وَرَسُولُهُ وَلاَ يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُواْ الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُواْ الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ (29)** .[1]

ترجمة : جنګ وکوئ د هغه کسانو سره چې په الله او د آخرت په ورځ ايمان نه راوړي او هغه څه چې الله حرام کړي دي هغه نه حراموي او په حق دين باندې نه ديندار کيږي له هغه کسانو څخه دي چې دوی ته کتاب ورکړل شوی دی تردې چې دوی په خپل لاس جزيه ورکړي .

الخراج : **مقدار معين من المال أو الحاصلات يُفرض على الأراضي التي فتحها المسلمون وتركوها لأهلها الأصليين غير المسلمين لزراعتها.**

ترجمة : خراج د مال يو معين مقدار دی يا د ځمکې حاصلات دي چې په هغه ځمکو مقرر کيږي چې مسلمانان يې فتح کړي لکن له خپلو مالکانو څخه

[1] سورة التوبة

يې وانخلي هغوى ته يې ور پريږدي د زراعت لپاره نو اسلامي دولت ته به خاص مقدار حاصلات وركوي .

نو ښكاره فرق يې دلته دادى چې جزية په انسانانو مقرره كيږي او خراج په زمكو .

ځينې يې تعريف داسې كوي :

**الجزية هى مقدار من المال فرضة المسلمين على النصارى واليهود مقابل حمايتهم والدفاع عنهم ويعفى منها الشيوخ والاطفال والنساء والمقعدين وتسقط بدخولهم فى الاسلام**

ترجمة : جزيه هغه مقدار او اندازه مال دى چې مسلمانان يې په نصارا او يهودو باندې د دوى د حمايت او له دوى څخه د دفاع په بدل كې په دوى لازموي او له هغې نه سپين ږيري ، ماشومان ، ښځې او په ځاى ناست شل كسان معاف دي او كله چې دوى په اسلام كې داخل شي او اسلام قبول كړي نو بيا ورڅخه جزيه نه اخيستله كيږي .

**الخراج مقدار من المال فرض على الارض الزراعية ويقدر على حسب المساحة وكمية المحصول ونظام الرى.**

ترجمة : خراج د مال مقدار دى چې په زراعي زمكو باندې مقرر كيږي د مساحة او اندازې په اعتبار او د زمكې نه د محصول په اعتبار او په مقرر كولو كې دېته هم نظر كيږي چې دا زمكه په څه ډول اوبه كيږي .

جزية او خراج دواړه د بيت المال دوه مهمې لارې د راتلو وې او له همدې نه د مسلمانانو بيت المال ډكېدو او رسول الله ﷺ يې د معجزانه پيشګويي په ډول خبر وركړى وو چې په يو وخت كې به دا دريږي او پدې سره به د مسلمانانو د بيت المال د آمد يوه مهمه لاره بنديږي حضرت ابو هريره ﷺ فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل : **مَنَعَتْ الْعِرَاقُ**

دِرْهَمَهَا وَقَفِيزَهَا وَمَنَعَتْ الشَّأْمُ مُدْيَهَا وَدِينَارَهَا وَمَنَعَتْ مِصْرُ إِرْدَبَّهَا وَدِينَارَهَا وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ. [1]

ترجمة : عراق به خپل درهم او خپل قفیز بند کړي او شام به خپل مُد او دینار بند کړي او مصر به خپل اردب او خپل دنیار بند کړي او تاسې به هغه ځای ته وګرځئ له کومه چې شروع شوي وئ او تاسې به هغه ځای ته وګرځئ له کومه چې شروع شوي وئ .

په حدیث کې یاد کړل شوي القفیز، المد، الاردب په هغه وخت کې پیمانې وې په همدې ښارونو کې او ځینې یې اوس هم پېژندل کیږي او درهم او دینار د هغه وخت د پیسو نومونه وو او په پورتني حدیث کې چې یاد شوي چې دا به له مسلمانانو څخه بند شي نو وجه یې داده چې دا ملکونه به د اسلامي دولت له ولکې بهر شي په ځینې زمانو کې چې بیا هماغسې وشول رومیانو او بیا تتاریانو په ډېرو اسلامي ملکونو باندې خپله قبضه راوسته او په اوس وخت کې خو کفارو په ډېرو اسلامي ملکونو باندې قبضه کړېده چې هغوی یې له اسلامي خلافت نه محروم کړي دي او له اسلامي شریعت نه یې لرې کړي دي .

او ځینې وایي چې رسول ﷲ فرمایلي دي چې دا ملکونه به جزیه او خراج ورکول بند کړي وجه به یې دا وي چې دا ملکونه به بېرته له اسلام څخه واوړي نو هغه شیان چې په دوی باندې د اسلامي احکامو له مخې فرض کیږي لکه زکات او داسې نور نو هغه به نه ورکوي او ځینې وایي چې وجه به یې دا وي چې هغه کفار چې په دوی باندې جزیه مقرره شوې وي په آخره زمانه کې به هغوی زورور

---

[1] صحیح مسلم

شي او د خپل زور لـه امله بـه بيا لـه جزيـې خراج او نـورو ورکولـو نـه انـکار وکـوي .[1]

رسول الله رښتيا ويلي وو څه وخت وروسته هغه خلکو چې اسلامي دولت تـه بـه يې جزيـه او خراج ورکولـو هغوی هم انکار وکولـو او جزيـه او خراج يې لـه اسلامي دولت څخه منع کړل او تر اوسه پوري منع شوي دي .

## ۱۲. پـه ښارونـو کې بـه امـن خپـور شي

کـله چې رسول الله ژوندی وو پـه هغه وخت کې پـه مدينـه منـوره کې خلکو د جنگونـو ، د دښمانـو د کتلو او لـه دښمنانـو څخه د ويرې پـه حالت کې ژوند کاوه پـه هغه وخت کې رسول الله دا خبر ورکړی وو چې تر قيامت وړاندې بـه يو داسې وخت راشي چې پـه ملکونـو کې بـه امن او امان وي ، ارامي بـه وي او دسکون ژوند بـه وي حضرت ابو هريره فرمايل فرمايي رسول الله : **لا تقوم السَّاعَة حتى** (بيا يې څه نـورې د قيامت نښې يادې کړيې دي او پـدې حديث کې فرمايي : **حتى يسير الراكب بين العراق ومكة لا يخاف إلا ضُلال الطريق** .[2]

ترجمة : د عربـو زمکه بـه داسې پـه امن کې شي چې يو کس بـه د عراق او مکې پـه مينـځ کې سفر کوي او پـدې سفر کې بـه يـوازې لـدې څخه ډاريـږي چې لاره تـرې ورکه نـه شي (يعني لـه غلو څخه ، قطاع الطريق څخه ، ظالمانـو څخه او هيڅ شي څخه بـه يې ويره نـه وي بس کـه ويره يې پـه زړه کې وي نو دا ويره بـه وي هسې نـه چې لاره غلطه کړي او پـه بـل لـوري لاړ شي نـور بـه د خپل ځان او مال پـه اړه مکملـه پـه اطمنـان کې وي) .

---

[1] شرح مسلم للنووي
[2] رواه البخاري

حضرت خباب بن الارت فرمايي رسول الله ته پداسې حالت کې راغلم چې هغه مبارک د کعبې په سيوري کې پروت وو او يو څادر يې تر سر لاندې کړی وو مونږ ته د مشرکينو نه تکليف رسېدلی وو ما ورته وويل يا رسول الله ته مونږ ته دعاء نه کوې (چې دا تکليفونه او د مشرکانو ضررونه راڅخه لرې شي) رسول الله را کېناستو او د مخ مبارک رنګ يې سور وو راته يې وويل : كَانَ الرَّجُلُ فِيمَنْ قَبْلَكُمْ يُحْفَرُ لَهُ فِي الأَرْضِ فَيُجْعَلُ فِيهِ، فَيُجَاءُ بِالْمِنْشَارِ فَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ فَيُشَقُّ بِاثْنَتَيْنِ وَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ، وَيُمْشَطُ بِأَمْشَاطِ الْحَدِيدِ مَا دُونَ لَحْمِهِ مِنْ عَظْمٍ أَوْ عَصَبٍ وَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ، وَاللَّهِ لَيُتِمَّنَّ هَذَا الأَمْرَ، حَتَّى يَسِيرَ الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَاءَ إِلى حَضْرَمَوْتَ لا يَخَافُ إِلاَّ اللَّهَ أَوْ الذِّئْبَ عَلَى غَنَمِهِ، وَلَكِنَّكُمْ تَسْتَعْجِلُونَ .[1]

ترجمة : ستاسې نه وړاندې به يو کس وو په زمکه کې به ځای ورته ژور کړل شو په هغه کې به ژوندی خښ کړل شو ، اره به ورته راوړل شوه او په سر به ورته کېښودل شوه هغه به دوه ټوټې کړل شو او دې هم له دين څخه نشوای اړولی ، د وسپني ګمنځ به ورته راوړل شوه او غوښه به يې له هډوکي او پلې څخه وربانديې ګمنځ کړل شوه دې به هم له دين څخه نشوای اړولی والله دا کار به پای ته ورسيږي او داسې به امن شي حتی چې يو کس به په سپرلۍ له صنعاء (يمن) څخه روانيږي حضرموت ته به ځي په لاره به له بل هېڅ شي څخه نه ډاريږي بس يو به د الله نه ډاريږي او بل به په لاره د کوم لېوه نه ډاريږي چې ګډان ترې ونه خوري لکن تاسې اوس تادي (بيړه) کوئ .

حضرت عدي بن حاتم فرمايي رسول الله ده ته وويل : اې عدي تا الحيرة ځای ليدلی دی؟ دی فرمايي ما ورته وويل : نه ليدلی مې نه دی خو نوم مې يې آورېدلی دی بيا رسول الله راته وويل

[1] رواه البخاري

: فإن طالت بك حياةٌ لَتَرَيَنَّ الظَّعِينةَ ترتحلُ من الحِيرة حتى تطوفَ بالكعبة لا تخاف أحداً إلا الله .

ترجمة : كه چېرته د عمر اوږد شو ته به يوه سپرلي كونكې (ښځه) ووينې چې له حيرة څخه به را روانيږي ترڅو په كعبه باندې طواف وكوي او پدې ټوله لار به يوازې د الله څخه ډاريږي (په زړه كې به يې د بل څه نه وېره او ډار نه وي)

حضرت عدي فرمايي : ما له ځان سره ويل چې دا د لارې غله او هغه چې خلک ورڅخه ډاريږي دا به هغه وخت چېرته وي بيا رسول الله راته وويل : ولئن طالت بك حياة لَتُفْتَحَنَّ كنوزُ كِسْرى (ترجمة : كه چېرته د عمر اوږد شو ته به د كسرى خزانې فتح كوې) ما له رسول الله څخه پوښتنه وكوله كسرى بن هرمز؟ رسول الله راته وويل : كسرى بن هرمز حضرت عدي فرمايي وخت تېر شو بيا داسې وخت راغلو چې ما يوه سفر كونكې وليده چې له حيرة څخه راغله او تر كعبه يې طواف وكولو او پدې ټوله لاره كې يې په زړه كې د الله نه بغير د بل چا وېره نه وه او زه په هغه كسانو كې وم چې د كسرى بن هرمز خزانې مو فتح كړې.

دا نښه لكه په هغه وخت كې چې واقع شوېده په احاديثو كې راغلي دي چې يو ځل به بيا هم واقع كيږي كله چې حضرت عيسى بېرته زمكې ته را ښكته شي حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله فرمايل : "الأنبياء إخوة لعلات، أمهاتهم شتَّى ودينهم واحد، وأنا أولى الناس بعيسى ابن مريم، لأنه لم يكن بيني وبينه نبي، وإنه نازل – (دا اوږد حديث دى بيا مخكې رسول الله فرمايي) ويهلك الله في زمانه المسيح الدَّجَّال ثم تقع الأمانةعلى الأرض؛ حتى

ترتع الأسود مع الإبل، والنمار مع البقر، والذئاب مع الغنم، ويلعب الصبيان بالحيَّات لا تضرهم .[1]

ترجمة : انبياء تول علاتي ورونه دي (چې مور يې يوه پلرونه يې بدل وي) موراني (شريعتونه) يې بدل دي او دين يې يو دی او زه حضرت عيسی ته تر ټولو خلکو ډېر ور نېږدې يم ځکه زما او د هغه په مينځ کې بل نبي نشته او هغه را ښکته کېدونکی دی د هغه په زمانه کې به دجال هلاکيږي بيا به په زمکه کې امانت خپور شي تردې چې زمريان او اوښان به سره ګډ خوراک کوي ، پړانګان او غوايه به سره شريک خوراک کوي همدارنګه ليوان به له مېږو سره خوراک کوي ماشومان به له مارانو سره لوبې کوي او دوی ته به ضرر نه رسوي .

همدارنګه حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله صص فرمايل : والله لينزلن عيسى ابن مريم حكماً عادلاً...، ثم قال: وليضعن الجزية، ولتتركن القلاص؛ فلا يُسعَى عليها، ولتذهبن الشحناء والتباغض والتحاسد، وليدعون إلى المال، فلا يقبله أحد.

ترجمة : و الله حضرت عسی را ښکته کيږي حاکم به وي عادل به وي ، جزيه به مقرره کړي ، تاسې به ځواناني اوښې پريږدئ ، هغې ته به څوک د ورتلو کوښښ نه کوي ، کينه او بغض به لاړ شي او يو څوک به چا ته مال ورکول غواړي او څوک به نه وي چې ترې قبول يې کړي .

## ۱۳. د ترکانو (تتاريانو او مغولو) سره جنګ

د قيامت بله نښه رسول الله ياده کړېده چې د مسلمانانو به له ترکيانو سره جنګ کيږي او ددې

[1] رواه الامام احمد

کسانو صفت رسول ﷺ په دقیق ډول کړی دی او څنګه چې رسول ﷺ صفت کړی وو په هماغه ډول تتاریان راغلل او په څه اسلامي ملکونو یې حمله وکوله او د رسول ﷺ پشګویي رښتیا شوه حضرت ابو هریره فرمایي: رسول ﷺ فرمایل: **لا تقوم السَّاعَة حتى تقاتلوا قوماً، نعالهم الشعر، ولا تقوم السَّاعَة حتى تقاتلوا قوماً، كأن وجوههم المَجَانٌ المُطْرَقة.** [1]

ترجمة: قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو تاسې له یو داسې قوم سره جنګ ونه کوي چې د هغوی څپلۍ لداسې څرمنې څخه جوړې شوې وي چې صفا کړل شوې نه وي او وېښته پرې ښکاره کیږي او تر هغه وخته پورې قیامت نه راځي تر څو له داسې یو قوم سره تاسې جنګ ونه کوي چې د هغوی مخونه لکه ډالونه داسې (ګرد) وي هغه ډالونه چې څرمن ور آغوستل شوې وي رسول ﷺ د دوی مخونه په ګرد والي کې له ډال سره مشابه کړل او بیا یې د هغه ډال سره مشابه کړل چې څرمن ور آغوستل شوې وي یعني د دوی مخونه به چاغ چاغ او له غوښو څخه ډک وي.

په یو بل روایت کې رسول ﷺ د دوی صفت داسې کړی دی: **تقاتلون بين يدي السَّاعَة قوماً نعالهم الشعر، كأن وجوههم المجان المطرقة، حُمْر الوجوه، صغار الأعين.** 2

ترجمة: تر قیامت وړاندې به د داسې قوم سره تاسې جنګ کوئ چې د هغوی څپلۍ له وېښتو څخه وي (یعني لداسې څرمنې څخه جوړې شوې وي چې صفا کړل شوې نه وي او وېښته وربانديې وي) او د هغوی مخونه لکه هغه ډالونه داسې وي چې څرمن وربانديې تاو کړل شوي وي (یعني ګرد او له غوښو ډک وي) سره سره مخونه یې وي او وړې وړې سترګې یې وي.

---

[1] **رواه البخاري**
[2] **صحيح البخاري، صحيح مسلم**

حضرت عمرو بن تغلب فرمايي : ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې فرمايل يې : **إن من أشراط السَّاعَة، أن تقاتلوا قوماً ينتعلون نِعال الشَّعر، وإن من أشراط السَّاعَة أن تقاتلوا قوماً عِراض الوجوه، كأن وجوههم المجان المطرقة .** [1]

ترجمة : د قيامت له نښو څخه يوه داده چې تاسې به لداسې قوم سره جنګ کوئ چې هغوی په پښو کوي د وېښتو څپلۍ او بېشکه د قيامت له نښو څخه يوه داد چې تاسې به له داسې قوم سره جنګ کوئ چې مخونه به يې پلن وي او مخونه به يې داسې وي لکه هغه ډالونه چې څرمنې وربانې تاو کړل شوې وي (مخونه به يې ګرد ګرد او له غوښو ډک وي) .

په بل حديث کې حضرت ابو هريرة فرمايي : **لا تقوم السَّاعَة حتى تقاتلوا قوماً نعالهم الشعر، وحتى تقاتلوا الترك صغار الأعين، حُمر الوجوه، ذُلْف الأنوف، كأن وجوههم المجان المطرقة.** [2]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو تاسې د داسې قوم سره جنګ وکوئ چې د هغوی څپلۍ له وېښتانو جوړې وي (يعني څپلۍ يې لداسې څرمنې وي چې صفاشوې نه وي او وېښتان وربانديې ښکاره کيږي) او ترڅو تاسې جنګ وکوئ له ترکانو سره چې وړې سترګې يې وي ، سره مخونه يې وي وړې پوزې يې وي مخونه يې لکه هغه ډالونه داسې وي چې څرمن وربانديې تاو کړل شوې وي يعني ګرد او له غوښو ډک وي .

په دې حديث کې او نورو احاديثو کې چې د ترک لفظ راغلی دی ددې په اړه علماء فرمايي : **والترك ليسوا بسكان تلك المنطقة الجغرافية التي أتى التقسيم بها بعدُ - أي ليسوا سكان "تركيا" ولكن المقصود بـ(الترك هم سكان شمال أسيا مما يتاخم**

---

[1] رواه البخاري و احمد
[2] رواه البخاري

أوربا، ومنهم: الصين، ومنغوليا، وفيتنام، وكوريا، وتايلاند، وأجزاء من سيبيريا.

ترجمة : ترکان هغه خلک نه دي چې په هغه خاص جغرافيايي منطقه (ترکيه) کې اوسيږي هغه چې وروسته کله زمکه په مختلفو ملکونو باندې تقسيم کړل شوه نو دا ملک پکې را ښکاره شو يعني دا ترکان د ترکيې اوسيدونکي نه دي بلکه په دې او نورو احاديثو کې د ترکانو څخه مطلب هغه کسان دي چې په شمالي آسيا کې اوسيږي چې له اروپا سره لګېدلي دي چې مراد ترېنه چين، منګوليا ، ويتنام، کوريا، تايلنډ او د سايبيريا څه برخې دي .

په يو بل روايت کې حضرت امام ابو هريره فرمايي رسول ﷺ فرمايل : **لا تقوم السَّاعَة حتى تقاتلوا خُوزاً وكَرْمَانَ من الأعاجم: حُمْر الوجوه، فُطْس الأنوف، صغار الأعين، كأن وجوههم المجان المطرقة، نعالهم الشعر.** [1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو تاسې د خوز او د کرمان له عجمو سره جنګ وکوئ چې سره مخونه يې ويي ، پيتې پوزې يې وي ، وړې سترګې يې وي مخونه يې لکه هغه ډالونه داسې وي چې څرمن ورباندې تاو کړل شوې وي (ګرد وي او له غوښې ډک وي) .

د خوز په اړه علماء فرمايي : د اهواز په علاقه کې دی اوس ورته خوزستان وايي.

فتح الباري د کرمان په اړه فرمايي : **هي بلاد مشهورة من بلاد العجم، يحدها من الغرب بلاد فارس، ومن الشمال خاراسان .**

---

[1] **صحيح البخاري**

ترجمة : د عجمو له بلادو څخه مشهور بلاد دي چې د غرب له لوري ورسره د فارس علاقه او د شمال له لوري ورسره د خراسان علاقه لګېدلې ده .

د قيامت دا نښه هم واقع شويده

ددې تولو نښو د ښكاره كېدلو نه وروسته علماء وايي دا تركان (تتار او مغول) وو چې په ٦٥٦ هجري (١٢٥٨ ميلادي) كال كې يې په اسلامي ملكونو باندې تعرض وكولو .

امام نووي فرمايي : **وقد وُجد قتالُ هؤلاء الترك بجميع صفاتهم التي ذكرها صلى الله عليه وسلم: "صغار الأعين، حمر الوجوه، ذلْف الأنوف، عِراض الوجوه، كأن وجوههم المجان المطرقة، ينتعلون الشعر" فوجدوا بهذه الصفات كلها في زماننا، وقاتلهم المسلمون مرات .** [1]

ترجمة : او ددې خلكو جنګ واقع شوى دى سره ددې تولو صفاتو كوم چې رسول الله ﷺ ذكر كړي دي وړې سترګې ، سره مخونه ، وړې پوزې ، پلن مخونه مخونه يې لكه هغه ډالونه داسې چې څرمن پرې خېږول شوې وي (ګرد او له غوښو ډک وي) د وېښتانو څپلى يې وي زمونږ په زمانه كې همدې تولو صفاتو سره وليدل شول او مسلمانانو ورسره ډېر ځله جنګ وكولو .

امام قرطبي فرمايي : **أن الترك خرجوا ثلاث مرات على المسلمين، وكان خروجهم الأخير تدمير بغداد، وقتلهم الخليفة والعلماء والفضلاء، ثم أوغلوا في البلاد حتى ملكوا الشام مدة يسيرة، ودخل رعبهم البلاد المصرية، إلى أن تصدَّى لهم الملك المظفر الملقب بـ(قطز) في معركة "عين جالوت"، فتفرَّقت جموعهم، وكفى الله المؤمنين شرهم .** [2]

---

[1] شرح مسلم للنووي

[2] التذكرة

ترجمة : ترکان په مسلمانانو باندې درې ځله را ووتل او آخري ځل راوتل یې د بغداد ورانول وو چې خلیفه ، علماء او فضلاء یې مړه کړل او پدې ښارونو کې ننوتل تردې چې د څه وخت لپاره د شام واکمنان شول او د دوی رعب د مصر ښارونو ته هم ورسېدو تردې چې کامیاب بادشاه چې قطز ورته ویل کېدل د عین جالوت په جنګ کې ورسره مخامخ شو د هغه جنګ سره یې ټولې ډلې سره خپرې شوې او الله یې مؤمنان له شر څخه خلاص کړل .

ددې واقعې په اړه امام ابن کثیر فرمایي :

چنګیز خان دومره مخلوق وژلی چې شمېره یې یوازې هغه چاته معلومه ده چې دا یې پیدا کړي وو او شروع یې له خوارزم شاه څخه وه کله چې چنګیز خان له خپله لوري تجاران ولېږل او له هغوی سره ډېر مال وو هغه چې ایران ته ورسېدل د خوارزم شاه نائب هغوی قتل کړل او له دوی سره چې څومره مال وو ټول یې ورڅخه واخیست چنګیز خان خوارزم شاه ته لیک واستولو پوښتنه یې ورڅخه کوله چې دا کار ستا په رضا سره شوی دی او که څنګه؟ یو لیک یې ورته لیکلی وو چې په هغه کې یې دا هم ورته لیکلي وو : بادشاهان تجاران نه مړه کوي ځکه په تجارانو سره د ملک ابادي وي او همدا خلک وي چې یو ملک ته ښه او قیمتي شیان راوړي او بیا دا تجاران ستا په دین وو او ستا نائب وژلي دي که چېرته هغه ته د داسې کولو تا امر کړی وي نو مونږ د هغوی د وینو طلب لتا څخه کوو او که چېرته ته ورڅخه انکار کوې نو بیا د له خپل نائب نه قصاص واخله .

پدې وخت کې خوارزم شاه زوړ شوی وو کارونه به یې په خپل سر کول نه یې ښه فیصله کولی شوای او نه یې له چا سره مشوره کوله نو یې ددې ټولو خبرو ځواب پدې کې پیدا کړو چې هغه رسول یې قتل کړو .. کله چې چنګیز خان لدې خبر شو

نو دده جنګ ته يې ملا وتړله همدا وو چې هغوی په ايران او عراق راغلل او هغه کارونه وشول چې مخکې چا نه وو آورېدلي .

پدې تعرض کې تتاريان د دو لکو جنګيالو په شاوخوا کې د هولاکو په مشرۍ کې را ووتل او د بغداد په لور روان شول په کال ٦٥٦ کې او سخت يې محاصره کړو او دائره يې ورباندې تنګه کړه او کله چې ورباندې برلاسي شول نو د خلکو په غاړو يې توره ور کېښوده خليفه المستعصم بالله يې په ډېر بد مرګ مړ کړو وروسته لدې چې يو ځل يې ورته امان ورکړو بيا يې ورسره خيانت وکولو او قتل يې کړو او په چا يې چې وس ورسېدو قتل يې کړل نه يې په سړيو صبر کاوه نه په ښځو او نه په ماشومانو او نه په بوډا ګانو او ځوانانو پدې مينځ کې علماء ، اميران او هر ډول خلک قتل کړل شول او د دوی په لاس چې څومره بد کارونه کېدل ويې کول ډېر خلک ترې وتښتېدل او په سورويو کې ننوتل او په شپو شپو خلک له سوريو څخه نه راوتل خلک به په پټ ځای کې ننوتل او په ځان پسې به يې دروازه بنده کړه تتاريان به پسې ورتلل يا به يې ور ماته کړه او يا به دروازه وسوزوله پسې به ورغلل او ټول به يې قتل کړل په هرځای کې وينې روانې وې حتی چې په جوماتونو ، لارو ، کوڅو کې او هرځای کې د وينو ويالې روانې وې هېڅ هم ترې خلاص نه وو يوازې اهل الذمه يهود او نصارا او هغه کسان چې هغوی ته يې په سخت وخت کې فناه وروړه هغوی ترې خلاص وي او هغه کسان خلاص وو چې وزير ابن العلقمي الرافضي ته يې پناه وروړې وه او دا هغه کس وو چې تتاريانو ته يې بلنه ورکړې وه چې بغداد ته د راشي او پدې ډول تتاريان پدې قتل ، فواحشو او ظلم کې تر ٤٠ ورځو پورې پاتې شول دار الخلافة مکمل ړنګ شو ، په ويالو کې وينې روانې وې ، هره خوا د مړيو د جسدونو بوی پورته کېدو ، او د بوې اندازې له مخې چې آته

لکه کسان قتل شول او د یو قول له مخې زر زره (۱۰۰۰۰۰۰) کسان قتل شول دا بغیر له هغه کسانو څخه چې د تتاریانو په لاس په حلب ، حمص، حماه، دمشق، نبلس، غزة او نورو ځایونو کې قتل شوي وو او همدارنګه د ا بغیر د هغه کسانو څخه دي چې دوی عراق ته په لاره را روان وو او په لاره یې په ماوراء النهر، خراسان، طبرستان، آذربیجان کې قتل کړل په هر ملک به چې تېرېدل سړي به یې قتل کول ، ښځې به یې بندیانې کولې ، ماشومان به یې غلامان کول ، مالونه به یې چور کول ، کورونه به یې ړنګول ، ابادي به یې سوزوله ، او آثار به یې ختمول ...[1]

## د قیامت واقع شوې او روانې نښې

د قیامت هغه نښې چې واقع شوي وي او بیا هم واقع کیږي او یا یو ځل واقع شوې وي او بیا بیا هم تکرار کېدلی شي او یا په موجوده وخت کې تکرار کیږي هغه په لاندې ډول دي :

## ۱. د فتنو را ښکاره کېدل

د فتنو را ښکاره کېدل رسول ﷲ د قیامت له نښو څخه بللي دي حضرت ابو هریرة فرمایي : رسول ﷲ فرمایل : **لا تقوم الساعة حتى** (قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو .... بیا یې څه د قیامت نښې یادې کړې چې ځینې تېرې شوې دي او ځینې به راشي او پدې حدیث کې یې بیا وویل) **وتظهر الفتن** (او فتنې به را ښکاره شي) .[2]

---

[1] البداية و النهاية
[2] صحيح البخاري

حضرت ابو موسى الاشعري فرمايي رسول ﷲ فرمايل : "إن بين يدي الساعة فتناً كقطع الليل المظلم، يصبح الرجل فيها مؤمناً ويُمْسِي كافراً، ويُمْسِي مؤمناً ويُصبِح كافراً . [1]

ترجمة : د قيامت نه مخکې داسې فتنې دي لکه د تورې شپې ټوټې يو سړی به په سحر کې مسلمان او په بيګاه کې کافر وي او بيګاه به مسلمان په سحر کې به کافر وي .

پدې حديث کې رسول ﷲ د يو داسې حالت په اړه خبر ورکوي چې فساد او فتنه به ډېره زياته شي ، اخلاق به خراب شي ، بد بختي به زياته شي ، بلا به عامه شي ، فساد به خپور شي تردې پورې چې د چا په ايمان به د يوې ورځې او يوې شپې يقين نه وي .

په بل حديث کې حضرت حذيفه فرمايي : رسول ﷲ فرمايل : يأتي على الناس زمانٌ يتمنَّون فيه الدَّجَّال، قلت: يا رسول الله، بأبي أنت وأمي، ممَّ ذاك؟ قال: ممَّا يلقون من العناء . [2]

ترجمة : په خلکو به داسې يو وخت راشي چې ددې تمنا به کوي چې دجال د راشي ما ورته وويل يا رسول ﷲ مور پلار مې لتا زار شه دا ولې؟ رسول ﷲ راته وويل : له هغه تکليف نه چې دوی ورسره مخامخ کيږي .

نو پداسې وخت کې چې په هغه کې فتنې زياتې شي تکليفونه زيات شي شهوتونه به هم پکې زيات شي په انسان به هر وخت داسې حالات راځي چې له امله يې په دين او په اسلام باندې مستقيم نشي پاتې کېدلی کله به دين ترينه په کوم دنيايي غرض کې له لاسه ځي او کله به ورته په ديندارۍ کې له بله پلوه مشکل راځي او کله به په بل

[1] رواه الامام احمد
[2] رواه الطبراني

داسي مصيبت کې آخته کيږي لکه رسول الله ﷺ چې مخکې په يو حديث کې فرمايل چې په سحر کې به يو کس مسلمان او په بيګاه کې کافر او په بيګاه کې به مسلمان او په سحر کې به کافر وي .

همدارنګه په بل حديث کې حضرت انس بن مالک فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل : **يكون بين يدي الساعة فتناً كقطع الليل المظلم، يصبح الرجل فيها مؤمناً ويُمْسِي كافراً، ويُمْسِي مؤمناً ويُصبِح كافراً، يبيع أقوامٌ دينَهم بعرضٍ من الدنيا.** [1]

ترجمة : د قيامت نه وړاندې به داسې فتنې وي لکه د تورې تيارې شپې ټوټې يو کس به په سحر کې مسلمان او په بيګاه کې به کافر وي په بيګاه کې به مسلمان او په سحر کې به کافر وي خلک به دين په کوم دنيايي مقصد خرڅوي .

په بخاري شريف کې هم روايت شوی دی حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **بادروا بالأعمال فتناً كقطع الليل المظلم، يصبح الرجل مؤمناً ويُمْسي كافراً، أو يُمْسِي مؤمناً ويُصبِح كافراً، يبيع دينه بعرضٍ من الدنيا.** [2]

ترجمة : نېک اعمال زر وکوئ مخکې لدې چې داسې فتنې به راشي لکه د تورې شپې ټوټې په سحر کې به يو سړی مؤمن وي او په بيګا کې به کافر وي او يا به په بيګا کې مسلمان او په سحر کې کافر وي خپل دين به په کوم دنياوي غرض خرڅوي .

امام نووي ددې حديث په شرح کې فرمايي : معنى الحديث: **الحث على المبادرة إلى الأعمال الصالحة قبل تعذرها، والاشتغال عنها بما يحدث من الفتن الشاغلة المتكاثرة المتراكمة، كتراكم ظلام الليل المظلم لا المقمر، ووصف صلى الله عليه وسلم نوعاً من شدائد تلك الفتن وهو: "أنه يُمْسِي مؤمناً ثم يُصبِح كافراً" أو عكسه -**

---

[1] **سنن الترمذي**
[2] **صحيح البخاري**

**شكَّ الراوي ـ، وهذا لِعِظَمِ الفتن؛ ينقلبُ الإنسان في اليوم الواحد هذا الانقلاب، والله أعلم.**

ترجمة : ددې حديث معنی داده چې انسان د نيکو عملونو په کولو باندې ور تيز کړي مخکې لدې چې هغه بيا نا ممکن شي او انسان ته بيا د نېکو عملونو د کولو وخت په لاس ورنشي او فتنې انسان مشغول کړي او زياتې شي او يوه په بله پسې شي او سر په سر شي لکه د تياره شپې ټوټې چې سپوږمۍ پکې نه وي چې څه نا څه رڼا وکوي او رسول الله په حديث کې د هغه فتنو د سختوالي يو مثال ورکړی دی چې په بيګاه کې به يو کس مؤمن وي او په سحر کې به کافر وي او يا ددې په عکس پدې کې د راوي شک دی چې اول يې سحر ياد کړو او که اول يې بيګا ياد کړو او دا د فتنو د لوی والي نښه ده چې انسان په يوه ورځ کې داسې بدليږي.

د ډېرو فتنو په اړه رسول الله څه لارښونې کړې دي د مثال په توګه :

لمړی :

فتنې د مدينې د مشرق لخوا را شروع کيږي

رسول الله چې په مدينه منوره کې وو نو په يو وخت يې ښکاره کړل چې د فتنو شروع به د مشرق له خوا کيږي او د مدينې منورې د مشرق خوا د عراق لوری دی لکه مخکې چې تېر شول د حضرت عثمان تر شهادت وروسته له هغه خوا نه اول د فتنو شروع وشوه هلته خوارج را پيدا شول او له حضرت علي سره جنګ ته تيار شول (قصه يې مخکې تېره شويده) .

په يو روايت کې رسول الله فرمايل : **اللهم بارك لنا في يَمننا، قالوا: يا رسول الله، وفي نجدنا، قال: اللهم بارك لنا في شامنا، اللهم**

بارك في يَمننا، قالوا: يا رسول الله وفي نجدنا، قال: فأظنه قال في الثالثة: هناك الزلازل والفتن، وبها يطلع قرن الشيطان. [1]

ترجمة : اى الله زمونږ په يمن كې مونږ ته بركت واچوه دوى ورته وويل : يا رسول الله زمونږ په نجد كې هم بيا رسول الله وفرمايل اې الله مونږ ته بركت واچوه زمونږ په شام كي او زمونږ په يمن كې دوى ورته وويل يا رسول الله زمونږ په نجد كې راوي وايي زما په گمان په دريم ځل يې وويل هلته به زلزلې كيږي او فتنې به را ښكاره كيږي او په هغه لورې كې به دشيطان ښكر را پورته كيږي .

امام خطابي ددې حديث په تفسير كې فرمايي : نَجْد من جهة المشرق، ومَن كان بالمدينة كان نجده بادية العراق ونواحيها، وهي مشرق أهل المدينة، وأصل النجد ما ارتفع من الأرض، وهو خلاف الغور فهو ما انخفض، وفيه ردٌ على مَن تَوَهَّمَ أن نجداً موضع مخصوص.

نجد د مشرق لوري ته دى او هغه څوك چې په مدينه منوره كې وي د هغه لپاره نجد د عراق او شاوخوا علاقه ده او دا د مدينې منورې مشرق لورى دى او په اصل كې نجد هغه زمكې ته ويل كيږي چې پورته وي او د ښكته زمكې خلاف ده او پدې كې په هغه چا باندې رد دى چې د نجد نه مراد هغه خاص ځاى دى . (خاص ځاى چې مخكې يې نوم نجد وو اوس ورته رياض ويل كيږي او د سعودي دارالحكومة دى نو په پورتني حديث كې نجد دا ځاى نه دى بلكه نجد پورته خواته ويل كيږي ، هغه ځاى ته ويل كيږي چې په لوړه وي)

نو علماء وايي چې د مدينې منورې لپاره نجد او مشرق د عراق علاقه ده او په پورتني حديث كې د رسول الله مطلب هم همدا دى نو بيا يې دا

[1] صحيح البخاري

پیشګویي صحیح ده او د قیامت دا نښه واقع شوې هم ده او بیا بیا به هم واقع کیږي ځکه له عراق نه د اول ځل لپاره شیعه ګان ، باطنیان، معتزله، جهمیة ، مجوس، مانویة ، مزدکیة ، هندوسیة ، قایدانیة ، بهائیة ، تتار ټول را ووتل او راوزي حتی چې دوی وایي دجال به هم د مدینې منورې له مشرق لوري نه راوزي او داسې نور ..

امام حافظ ابن حجر فرمایي : **أن أول الفتن كان من قِبَلِ المشرق، فكان ذلك سبباً للفرقة بين المسلمين، وذلك ممَّا يحبه الشيطان ويفرح به، وكذلك البدع نشأت من تلك الجهة.**

ترجمة : اولې فتنې د مشرق له لورې نه وې (په نسبت مدینې منورې ته) او هغه فتنې ددې سبب شو چې د مسلمانانو په مینځ کې فرقې جوړې شوې او دا هغه څه دي چې د شیطان خوشیږي او هغه وربانديې خوشحالیږي او همدارنګه بدعتونه له همغه لوري نه را شروع شول .

دوهم :

په فتنو سره الله انسانانو ته اجر ورکوي او پدې سره د انسانانو ګناهونه ختمول کیږي او الله

په فتنو سره د مسلمانانو مرتبې پورته کوي ځکه پدې فتنو کې تکلیفونه وي او د هر تکلیف په بدل کې الله مسلمان ته اجر او ثواب ورکوي دا چې فتنې د ګناهونو د ختمولوسبب کیږي پدې اړه رسول الله فرمایي : **أُمَّتي هذه مرحومة، ليس عليها عذابُ في الآخرة، عذابها في الدنيا: الفتن، والزلازل والقتل** .[1]

ترجمة : زما پدې امت باندې به الله رحم کوي په دوی به په آخرت کې عذاب نه راولي عذاب یې په

[1] رواه ابي داود

دنیا کې دادی چې په دوی کې به فتنې راځي ، زلزلې او قتلونه به پکې راځي .

دریم :

د فتنو په وخت کې باید انسان خپل دین کلک ونیسي او په خپل دین منګولې ولګوي او که کوم مشکل ورته مخې ته راځي حل یې یوازې او یوازې په هغه طریقه ولټوي چې په کومه کې الله نه خفه کیږي او د الله له دین څخه خلاف نه وي سره ددې چې کله به د فتنو په وخت کې داسې حالت راشي چې په خپل دین باندې ټینګ پاتې کېدل به ډېر مشکل وي رسول الله فرمایي: **یأتي على الناس زمانٌ، الصابر فيهم على دينه كالقابض على الجمر** [1]

ترجمة : په خلکو باندې به داسې یو وخت راشي چې په هغه وخت کې به په دین باندې صبر کونکی داسې وي لکه اور چې څوک په لاس کې اخلي .

ددې مطلب دادی چې : **كما لا يمكن القبض على الجمر إلا بصبرٍ شديد، وتحمل غلبة المشقة، كذلك في ذلك الزمان لا يتصور حفظ دينه ونور إيمانه إلا بصبر عظيم .** [2]

ترجمة: لکه چې اور په لاس کې نیول زیات صبر غواړي او ډېر تحمل غواړي همدارنګه د فتنو په زمانه کې د دین ساتل او د ایمان د رڼا ساتل بغیر د لوی صبر څخه نه تصور کیږي .

همدارنګه حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي : رسول الله فرمایل : **إن من ورائكم زمانَ صبرٍ، للمستمسك فيه أجرُ خمسين شهيداً منكم .** [3]

---

1 . رواه الترمذي

2 تحفة الاحوذي

3 رواه الطبراني

ترجمة : بېشکه ستاسې شا ته داسې يوه د صبر زمانه ده چې په هغه کې ځوک په خپل دين باندې منګولې ولګوي هغه ته به د پنځوسو شهيدانو اجر ورکول کيږي .

نو د قيامت دا نښه لکه چې مخکې تېر شول هم واقع شويده او اوس هم واقع کيږي او هم به بيا بيا واقع کېږي او تکرار کيږي به .

## ۲. د مرګ تمنا کول

د قیامت له نښو نه بله داده چې کله فتنې زیاتې شي نو یو ژوندی انسان به وي او په صحت کې به وي خو بیا به هم ددې تمنا کوي چې دی مړ شوی وای سره ددې چې یو مؤمن ته روا نه دي چې د ځان لپاره مرګ وغواړي ځکه د مؤمن ژوند ټول خیر دی که چېرته نېک وي نو د عمر زیاتوالی د هغه نیکیانې زیاتوي او که بد عمل وي نو کېدای شي په لږ نور وخت کې ورته د توبې توفیق ورکړل شي او لدې بدو واوړي.

حضرت ابو هریره فرمایل فرمایي رسول الله : **لا يتمنَّينَّ أحدُكُم الموت، إما مُحسناً فلعله أن يزداد خيراً، وإما مُسيئاً فلعله أن يُستعتب.** [1]

ترجمة : په تاسې کې د هېڅوک هم د مرګ تمنا نه کوي که چېرته نېک عمل وي نو کېدای شي خیر به یې زیات شي او که چېرته بد عمل وي نو کېدای شي توبه وباسي او د الله د رضا کولو کوښښ وکوي او لدې خپلو بدو واوړي.

امام ابن حجر عسقلاني فرمایي : **"وفي قول النبي صلى الله عليه وسلم: "إما مُحسناً فلعله أن يزداد خيراً، وإما مُسيئاً فلعله أن يُستعتب" فيه إشارة إلى أن المعنى في النهي عن تمنِّي الموت، والدعاء به هو انقطاع العمل بالموت، فإن الحياة يتسبب منها العمل، والعمل يحصل زيادة الثواب، ولو لم يكن إلا استمرار التوحيد؛ فهو أفضل الأعمال .** [2]

ترجمة : د رسول الله پدې قول کې چې هغه فرمایي که چېرته نېک وي نو کېدای شي نیکي به یې زیاته شي او که چېرته بد عمل وي نو کېدای شي

[1] رواه البخاري
[2] فتح الباري

لدې بد عمل څخه واوړي پدې کې دېته اشاره ده چې مقصد په منع د تمنا کولو د مرګ کې او یا د ځان لپاره د مرګ د دعا د غوښتلو نه په منع کې مقصد دادی چې په ژوند کې انسان نېک عملونه کولی شي او د نېک عمل سره ثواب زیاتیږي او که چېرته بل نېک عمل ونه کوي نو په توحید باندې پاتې کېدل هم نېک او غوره عمل دی .

خو بیا هم سره ددې حرمت نه چې کله فتنې زیاتې شي رسول ﷺ فرمایلي دي چې یو مسلمان به ددې امید کوي چې دی کاش مړ شوی وای او حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي : **سيأتي عليكم زمانٌ لو وَجَدَ أحدُكُم الموتَ يُبَاع لاشتراه .**

ترجمة : پتاسې به داسې یو وخت راشي چې که یو له تاسې نه مرګ پیدا کړی وای چې خرڅیږي نو اخیستی به یې وای .

او دا حالت هم د قیامت له نښو څخه دی حضرت ابو هریره فرمایي : رسول الله فرمایل : **لا تقوم السَّاعة حتى يمرَّ الرجل بقبر الرجل، فيقول: يا ليتني مكانه.** [1]

ترجمة : قیامت تر هغه وخت پورې نه راځي ترڅو داسې یو حالت راشي چې یو کس د کوم سړي په قبر تیریږي او وایي کاش ددې کس په ځای په قبر کې زه وای .

او یو مسلمان سره ددې چې پدې پوه وي لکه په مخکې احادیثو کې تېر شول چې د ځان لپاره مرګ غوښتل نا روا دي بیا هم ددې تمنا ولې کوي امام ابن حجر فرمایي : ابن بطال فرمایل : چې خلک به ددې تمنا کوي چې دوی مړه شوی وای او یا په قبرونو کې دوی وای دا به د فتنو په وخت کې څکه کیږي چې خلک به پدې ډاریږي چې هسې نه په فتنو کې ورڅخه دین لاړ شي او د باطل خلک

---

[1] رواه البخاري

په دوی باندې غالب شي او له دوی څخه ناروا و شي.[1]

او کله چې انسان له ناروا څخه وېرار شي او د فتنو حالت راشي او انسان پدې وېرار شي چې دده له لاسه به دده دین ووزي او یا به دی په ناروا کې آخته شي نو بیا که د ځان لپاره د مرګ سوال وکوي نو دا ناروا نه دی او د رسول الله په دعاء کې هم داسې الفاظ راغلي دي لکه رسول الله چې فرمایي : **اللهم إني أسألكَ فعل الخيرات، وترك المنكرات، وحب المساكين، وأن تغفر لي وترحمني، وإذا أردت فتنةَ قومٍ فتوفَّنِي غير مفتونٍ.**[2]

ترجمة : ای الله زه لتا څخه سوال کوم د نیکو کارونو د کولو ، د بدو کارونو د پرېښودلو ، د مسکینانو سره د مینې او دا چې ته ماته بښنه وکوې په ما رحم وکوې او کله دې چې په قوم کې د فتنې اراده وه ما ترینه پداسې حالت کې مړ کړه چې په فتنه کې نه وم واقع شوی .

---

[1] فتح الباري
[2] رواه الامام احمد

حضرت عمر هم د خپل عمر په آخر کې ځان ته دعاء وکوله او فرمایل یې :

**اللهم، قد ضعفت قوتي، وكبرت سنِّي، وانتشرت رعيَّتي، فاقبضني إليك غير مُضيِّع ولا مُقَصِّر.** [1]

ترجمة : ای الله زما قوت کمزوری شو ، عمر مې زیات شو ، رعیت مې خپور شو ، ما له دنیا نه پداسې حالت کې واخله چې زه ضائع کونکی ستا د حقونو نه وم او نه کوتاهي کونکی .

او حضرت عمر چې دا دعاء وکوله میاشت تېره نه وه چې الله ورته شهادت ورکړو .

او علماء کرام فرمایي کله چې حضرت مریم وډاره شوه چې اوس خو به دلته فتنه جوړه شي خلک به په دې باندې څه شک کوي چې دا ماشوم (عسی ) دې له کومه کړو نو دې وویل : **يَا لَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ هَذَا وَكُنتُ نَسْياً مَّنسِيّاً .** [2]

امام ابن کثیر ددې آیت په تفسیر کې فرمایي :

**فيه دليل على جواز تمنِّي الموت عند الفتنة؛ فإنها عرفت أنها ستُبْتَلى وتُمْتَحن بهذا المولود الذي لا يحمل الناس أمرها فيه على السداد ولا يصدقونها في خبرها، وبعدما كانت عندهم عابدة ناسكة تصبح عندهم فيما يظنون عاهرة زانية، فقالت: ( يَا لَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ هَذَا )أي: قبل هذا الحال، ( وَكُنتُ نَسْياً مَّنسِيّاً ) أي: لم أُخْلق ولم أكُ شيئاً .** [3]

ترجمة : پدې کې دلیل دی چې د فتنې په وخت کې د مرګ تمنا روا ده ځکه دا مبارکه پوه شوه چې اوس به پدې باندې مصیبت راځي او پدې به

---

[1] **رواه** الامام **مالك**
[2] **سورة مريم آية ٢٣**
[3] **تفسير ابن كثير**

امتحان راځي چې دا خلک به ددې دا حال لدې سره ونه مني او ددې د خبرې تصديق به ونه کوي وروسته لدې چې دا په دوی کې نېکه ، عابده وه اوس به د دوی په ګمان کې زانيه وي نو ځکه يې وويل کاش مخکې لدې حال نه زه مړه شوې وای او زه هېڅ شی نه وای .

## ۳. وخت سره نېږدې کېدل

بله د قيامت نښه داده چې وخت به سره نېږدې شي ورځې به زر زر تيرېږي او يو کار چې يوه هفته وړاندې تېر شي انسان ته به محسوس کيږي لکه پرون چې تېر شوی وي همداسې چې د يو انسان په کوم کار او يا کوم ځای کې دوه کال تېر شي ده ته به داسې محسوس کيږي لکه شپږ مياشتې او يا دېته ورته وخت چې تېر شوی وي او له وخت نه به برکت لاړ شي لکه مخکې چې کومو خلکو کوم کار په يو کال کې کولو داسې وخت به راشي هغه کار به خوک په دوه کلونو او يا تردې هم په زيات وخت کې نشي کولی.

حضرت ابو هريره فرمايل رسول الله فرمايي : **لا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ ، وَتَكْثُرَ الزَّلازِلُ ، وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ . .** الحديث .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو علم قبض شي ، زلزلې زياتې شي او وخت سره نېږدې شي .

په دې ډول په مختلفو احاديثو کې همداسې الفاظ راغلي دي په يو حديث کې رسول الله فرمايي : **إن من أشراط السَّاعة أن يتقاربَ الزمان..الحديث.**[2].

1 **صحيح البخاري**
2 **رواه بخاري و مسلم**

ترجمة : بېشکه د قیامت له نښو څخه دا ده چې وخت سره نېږدې شي او ....

په بل روایت کې رسول ﷺ فرمايي : **يتقارب الزمان، وينقص العلم .... الحديث .** [1]

ترجمة : وخت سره نېږدې کيږي او علم کميږي ....

امام نووي فرمايي : **الْمُرَاد بِقِصَرِهِ عَدَم الْبَرَكَة فِيهِ ، وَأَنَّ الْيَوْم مَثَلا يَصِير الانْتِفَاع بِهِ بِقَدْرِ الانْتِفَاع بِالسَّاعَةِ الْوَاحِدَة .** [2]

ترجمة : د وخت د لنډېدلو مطلب دادی چې له وخت نه به برکت لاړ شي او په يوه ورځ کې به خلک دومره کار کوي لکه د يو ساعت .

حافظ ابن حجر فرمايي :

**وَالْحَقّ أَنَّ الْمُرَاد نَزْع الْبَرَكَة مِنْ كُلّ شَيْء حَتَّى مِنْ الزَّمَان ، وَذَلِكَ مِنْ عَلامَات قُرْب السَّاعَة .** [3]

ترجمة : حق خبره داده چې ددې مطلب دادی چې برکت به له هرشي نه لاړ شي حتی چې له وخت نه به هم برکت لاړ شي او دا د قيامت د را نېږدې کېدلو نښه ده .

ځينې علماء وايي مطلب يې دادی چې هغه ځايونو ته چې اوس خلک په ډېر زيات وخت کې رسيږي داسې وخت به راشي چې خلک به ډېر زر ورته رسيږي د مثال په ډول د څو مياشتو د سفر مسافه اوس طياره په څو ساعتونو کې قطع کوي .

---

1 رواه ابو دواد
2 شرح مسلم للنووي
3 فتح الباري

یو روایت داسې هم دی چې د وخت د سره نېږدې کېدلو مطلب دادی چې : **تسارع الدول إلى الفناء والانقضاء والزوال، فلا تطول مدتهم لكثرة الفتن.**

ترجمة : ملکونه به زر زر ورانیږي ملکونه به د فناء او ختمېدلو او زړېدلو په لور زر ورځي او زمانه به یې نه اوږدیږي ځکه فتنې به زیاتې وي .

په یو حدیث کې یې رسول ﷺ پخپله هم تشریح کړېده حضرت ابو هریرة فرمایي رسول ﷺ فرمایل : **لا تقوم الساعة حتى يتقارب الزمانُ، فتكون السَّنةُ كالشهرِ، ويكون الشَّهر كالجُمُعة، وتكون الجُمعة كاليوم، ويكون اليومُ كالساعةِ، وتكونَ السَّاعةُ كاحتراق السَّعْفَةِ .** [1]

ترجمة : قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو وخت سره نېږدې شي کال لکه میاشت داسې شي ، میاشت لکه جُمعه داسې شي ، جُمعه (هفته) لکه ورځ داسې شي او ورځ لکه یو ساعت داسې شي او یو ساعت داسې تیریږي لکه د کجورې پاڼه چې زرسوزیږي او ختمیږي .

ددې نښې په اړه هم علماء فرمایي چې د قیامت دا نښه له ډېر وخت نه موجوده ده او پورته چې کوم مطلبونه یې تېر شول د ټولو مطلبونو له مخې موجوده ده که یې دا معنی را واخلو چې له ډېر وخت نه به لږ استفاده کیږي نو چې لږ وړاندې د علماوو عمرونو او د هغوی تصنیفاتو ته وګورو نو مونږ به وینو چې هغوی په یوه کال کې څومره خدمت کړی او څومره لیکنې یې کړې اوس د هغه وخت په نسبت د ډېرو ښو اسبابو سره هم اوسني خلک په ډېر وخت کې په هغه اندازه کار نشي کولی او که پدې معنی یې راواخلو چې خلکو ته به لنډ محسوس کیږي نو دا هم واقع دی

[1] رواه الامام احمد

چې اوس څوک د پنځه کاله مخکې خبره کوي کله کله د انسان ذهن په اسانه نشي منلی چې رښتیا هغه واقعه پنځه کاله وړاندې وه او که یې پدې معنی را واخلو چې کوم ځای ته به انسان په ډېر وخت کې رسېدو بیا به ورته په کم وخت کې رسیږي بیا خو دا نښه په سترګو لیدل کیږي چې تر مخکې نه ډېره کمه شوېده د زمکې په مخ په وسائطو سره ، په بحر کې او په هوا کې چې کوم سفرونه کیږي دا له مخکې نه انسان مقصد ته ډېر زر رسوي او پدې کې لا نوره هم ترقي روانه ده والله اعلم و علمه اکمل چې لدې به وروسته نور څه راوزي ځکه خو حافظ ابن حجر هم فرمایي : **قد وجد في زماننا هذا فإننا نجد من سرعة مر الأيام ما لم نجده في العصر الذي قبل عصرنا هذا .** [1]

ترجمة : او دا لنډ والی موجود شوی دی زمونږ په زمانه کې ځکه مونږ محسوس کوو چې ورځې څومره زر زر تیریږي داسې زر زر تېرېدل تردې وخت وړاندې کله نه وو لیدل شوی .

[1] **فتح الباري**

# ٤. د نبوت دعوه کونکي پيدا کېدل

رسول الله ﷺ د قيامت بله نښه دا ښودلې ده چې پدې امت کې به داسې پليد خلک را پيدا شي چې د پيغمبري دعوې به وکوي او په ځينې احاديثو کې يې رسول الله ﷺ شمېره هم ياده کړېده چې دېرشو او يا ۲۷ کسانو ته به يې شمېره ورسيږي حضرت ابو هريره ؓ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **لا تقوم الساعة حتى يُبعَث دجَّالون كذَّابون قريب من ثلاثين، كلٌّ يزعم أنه رسول الله** .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راحي ترڅو را ښکاره شي داسې دجالان او درواغجن خلک چې نېږدې دېرشو ته به رسيږي او هر يو به دا دعوه کوي چې دی پيغمبر دی .

په بل روايت کې حضرت ثوبان ؓ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **وإنه سيكون في أمتي كذَّابون ثلاثون، كلهم يزعم أنه نبي، وأنا خاتم الأنبياء، لا نبيٍّ بعدي.** [2]

ترجمة : او پيدا به شي زما په امت کې درواغجن دېرش کسان هر يو به دا دعوه کوي چې دی نبي دی او په حقيقت کې زه د انبياوو آخر يم زما نه وروسته بل نبي نشته .

په بل روايت کې حضرت ثوبان ؓ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل **لا تقوم الساعة حتى تلحق قبائل من أُمَّتِي بالمشركين، وحتى يعبدوا الأوثان، وإنه سيكون في أمتي ثلاثون كذَّابون، كلهم يزعم أنه نبي، وأنا خاتم النبيين، لا نبيٍّ بعدي** .[3]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو زما د امت نه څه قبيلې له مشرکينو سره يوځای

---

[1] صحيح البخاري و مسلم
[2] صحيح مسلم
[3] رواه ابو داود

شي ، او ترڅو هغوی د بتانو عبادت وکوي او زما د امت په آخر کې به دېرش کسان درواغجن وي هر يو به دا ګمان کوي چې دی نبی دی او په حقيقت کې زه د انبياوو آخر يم زما نه وروسته بل نبي نشته .

په يو بل روايت کې اوه ويشت ياد کړل شوي حضرت حذيفة فرمايي رسول الله فرمايل : **في أمتي كذَّابون، ودجَّالون سبعة وعشرين، منهم أربع نسوة، وإني خاتم النبيين، لا نبيّ بعدي** .[1]

ترجمة : زماپه امت کې به درواغجن او دجالان را پيدا شي اوه ويشت څلور به پکې ښځې وي او زه د انبياوو آخر يم زما نه وروسته بل نبي نشته .

په ځينې رواياتو کې يې نښې هم يادې کړل شوي دي حضرت جابر بن عبد الله فرمايي رسول الله فرمايل : **إن بين يدي السَّاعة كذَّابين، منهم صاحب اليمامة، ومنهم صاحب صنعاء العَنسي، ومنهم صاحب حِمْيَر، ومنهم الدَّجَّال وهو أعظمهم فتنة**[2]

ترجمة : بېشکه تر قيامت وړاندې درواغجن دي په هغوی کې به يو له يمامة څخه وي ، يو به له صنعاء څخه وي ، يا به د حمير وي او يو به دجال وي او دا په فتنه کې تر ټولو لوی دی .

په يو بل حديث کې رسول الله فرمايي : **وإنه والله لا تقوم الساعة حتى يخرج ثلاثون كذَّاباً آخرهم الأعور الكذَّاب** .[3]

ترجمة : او بېشکه و الله قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو پورې دېرش درواغجن را ښکاره نه شي په آخر کې به يې په يوه سترګه ړوند درواغجن وي .

---

[1] رواه الطبراني
[2] اخرجه ابن حبان
[3] مسند امام احمد ابن حنبل

د قیامت له علامو څخه دا علامه هم مخکې واقع شوېده او دادي زمونږ په وخت کې هم واقع کیږي او په آخر کې به یې دجال وي د صحابه وو په وخت کې هم خلک را ښکاره شول او د هغه نه وروسته هم را ښکاره شول د مثال په ډول :

## الاسود العنسي ملعون

دا د رسول ﷲ د ژوند په آخر کې په یمن کې را ښکاره شو له اسلام نه واوښت او د پیغمبري دعوه یې وکوله او دهغه مرتد کېدل په اسلام کې اول مرتد کېدل وو تر هغه وړاندې داسې مسلمان نه وو پیدا شوی چې تر اسلام وروسته بېرته کفر ته آوښتی وي ده خپله د پیغمبري دعوه وکوله او څه کسان یې له ځان سره ملګري کړل او څه جنګیالي یې هم پیدا کړل او د دریو او څلورو میاشتو په دوران کې یې تقریباً په ټول یمن باندې قبضه وکوله رسول ﷲ په یمن کې پاکو مسلمانانو ته لیک ور واستولو او د هغه ملعون سره د جنګ کولو نصیحت یې ورته وکولو هلته چې کوم پاک مسلمانان پاتې وو هغوی د رسول ﷲ په امر د هغه جنګ ته را پورته شول دده یوه ښځه خوښه شوې وه د هغې خاوند یې مړ کړی وو او ځان ته یې په زور واده کړې وه او هغه مسلمانه وه د هغه په مرسته مسلمانانو له ده سره جنګ شروع کړو او مسلمانانو ته ﷲ فتح او کامیابي ورکړه کله یې چې دی مړ کړو په ټول یمن کې اسلام یو ځل بیا ښکاره شو او ددې زیري ورکولو لپاره یې رسول ﷲ ته یو لیک را ولېږلو لکن ترڅو چې هغه لیک را رسېدو رسول ﷲ ته ﷲ ددې کامیابي خبر ورکړی وو او له کوم وخت نه چې دی را ښکاره شوی وو تر مرګ پورې یې د یمن واکدار پاتې شو چې ټوله موده د قدرت یې دری او یا څلور میاشتې وه .

## مسیلمه کذاب په یمامه کې

دا ملعون هم د رسول الله په وخت کې راښکاره شو د پیغمبري دعوه یې وکوله او ویل به یې چې ده ته په تیاره کې وحی راځي کله چې رسول الله وفات شو حضرت ابو بکر صدیق د حضرت خالد بن ولید ، عکرمة بن ابي جهل ، شرحبیل بن حسنة په مشري کې یو جنګي لښکر ور ولیږلو مسیلمة کذاب چې پدې وخت کې په خلکو کې ښه رول پیدا کړی وو او ډیره مخه یې درلوده د څلویښت زره فوج سره له صحابه کرامو سره مخامخ شو د دواړو په مینځ کې سخت سخت جنګونه وشول بالآخره مسیلمة کذاب ووژل شو او حق یو ځل بیا و ځلیدو او پورته شو او هغه ټوله دبدبه او قدرت او نظام او دده د درواغو پیغمبري هرشی دده له مرګ سره مړه شول .

## سجاح بنت الحارث التغلبية

دا ښځه وه له عربو نصاراوو څخه وه د رسول ﷲ تر وفات وروسته هغې هم د پيغمبري دعوه وکوله د خپل قوم زيات خلک يې په ځان را ټول کړل او د شاوخوا ګاونډيانو قبيلو ځينې خلک يې هم د خپل ځان کړل او په خپله رايه يې راواړول او راغله له بل کذاب مسيلمة سره يې واده وکولو او ښځه او خاوند دواړو د پيغمبري دعوه درلوده کله چې مسليمة مردار شو دا بېرته خپل ځای ته لاړه او په بني تغلب قوم کې چې ددې خپل قوم وو هلته پاتې شوه او د اسلام په مبارک دين مشرفه شوه او د هغې نه وروسته بيا ښه مسلمانه پاتې شوه بيا بصرې ته لاړه او هماغلته په حق ورسېده .

## طليحه بن خويلد الاسدي

ده هم د صحابه وو په وخت کې د پيغمبري دعوه وکوله متعدد ځله ورسره مسلمانانو جنګونه وکول او وربانډې بريالي نه شول آخر يې په خپله هدايت نصيب شو او په اسلام مشرف شو او د مسلمانانو د لښکر سره ملګری شو او د ﷲ په لاره کې يې جهاد وکولو او سختې قربانۍ يې ورکړې او له پوره ميړانې سره جنګېدو بالآخره د نهاوند په مشهوره غزا کې په شهادت ورسېدو .

## مختار بن ابي عبيد الثقفي

دا د تابعينو په وخت کې را ښکاره شو او د پيغمبري دعوه يې وکوله په ابي داود کې پدې اړه يو حديث هم شته هلته فرمايي : **حتى يخرج**

ثلاثون كذَّاباً دجَّالاً، كلهم يكذب على الله ورسوله، فسُئل عبيدة السَّلماني: أترى هذا منهم ـ يعني المختار؟ ـ فقال عبيدة: أما إنه من الرءوس .[1]

ترجمة : رسول الله وفرمايل ترهغه وخته قيامت نه راځي ترڅو دېرش درواغجن را ښکاره شي ټول بي په الله او د هغه په رسول پورې درواغ وايي د حضرت عبيدة السلماني نه پوښتنه وشوه : ستا څه ګمان دی چې دا له هغه درواغ ويونکو څخه دی يعني مختار؟ عبيدة وويل : دايې له هغه نه دی چې په سر کې دي (دا يې له لويانو څخه دی) .

همدارنګه په مسلم شريف کې يو روايت دی چې کله حضرت اسماء بنت ابي بکر الصديق د خپل زوی د قتل په وخت کې له حجاج ابن يوسف الثقفي سره خبرې کولې ورته يې وويل : أما إن رسول الله صلى الله عليه وسلم حدثنا أن في ثقيفٍ كذَّاباً وَمُبِيراً ، فأمَّا الكذَّاب فقد رأيناه، وأما المُبِيرُ فلا إِخَالُك إلا إياه، قال: فقام عنها ولم يراجعها.[2]

ترجمة : او بېشکه رسول الله مونږ ته قصه کړېده چې په ثقيف قبيله کې به يو درواغجن را ښکاره کيږي او يو به قاتل را ښکاره کيږي کذاب او درواغجن خو مونږ وليد (مطلب يې مختار بن ابي عبيد الثقفي وو) او مبير زما په ګمان چې د تا نه بغير بل څک نه دي او وايي چې حجاج ترېنه پاڅېدو او هېڅ يې هم ورته ونه ويل .

امام نووي ددې حديث په تشريح کې فرمايي :

د کذاب په اړه هغې مبارکې وويل چې هغه مونږ وليدو مطلب يې مختار بن ابي عبيد الثقفي وو ده به ډېر زيات درواغ ويل او يو له بدي ددده څخه دا وو چې ده به ګمان کاوه چې جبريل ده

[1] ابو داود
[2] صحيح مسلم

ته راځي او علماوو پدې اتفاق كړى دى چې دلته له كذاب نه مراد مختار بن ابي عبيد او له مبير نه مراد حجاج بن يوسف وو والله اعلم .[1]

مختار الثقفي په اول كې ځان شيعه ښكاره كړو او په ځان يې ډېر شيعه ګان را ټول كړل او ده به ويل چې ده ته د شپې جبريل راځي او دده او د حضرت مصعب بن زبير په مينځ كې ډېر جنګونه وشوله او په همدې جنګونو كې مختار ووژل شو .

## حارث بن سعيد الكذاب

دا اول په دمشق كې را ښكاره شو او خپل ځان يې خلكو ته يو عابد ښكاره كړو او بيا وروسته يې دعوه وكوله چې دى نبى دى او كله چې خبر شو چې دده د حال خبر خليفة عبدالملک بن مروان ته ورسېدو نو ځان يې پټ كړو د بصرې يو كس وو هغه پسې ولګېدو او دى يې پيدا كړو چې چېرته دى او هغه ته يې ځان ور ښكاره كړو چې دا كس خو دده خبره مني او دى په پيغمبري باندې مني او دى دده له مخلصينو څخه دى حارث بن سعيد كذاب خپل څوكيدار ته وويل : دا كس چې هر وخت راځي راساً يې را پرېږده له ده څخه زما څه پرده نشته دا كس لاړو او ټول حال يې عبدالملک بن مروان ته وويل خليفة له ده سره كسان را ولېږل او دا كذاب يې ونيولو او د خليفه په مجلس كې يې كېنولو هغه ورته څه علماء او فقهاء مقرر كړل چې ده ته نصيحت وكوي او ده ته ووايي چې دا د شيطان حركت دى چې تاته يې په زړه كې در اچولى دى او هېڅ ډول حقيقت نلري او لدې نه د توبه وباسي هغوى ده ته ډېر نصيحت وكولو لكن دى بيا هم په خپله ګمراهي باندې كلک وو او ويل يې نه

---

[1] شرح مسلم للنووي

زه پیغمبر یم بالآخره عبدالملک بن مروان قتل کړو او خلک یې دده له شر څخه خلاص کړل .

## میرزا غلام احمد القادیاني

دا په وروستیو کې تېر شوی دی په هندوستان کې په قادیان علاقه کې پیدا شوی وو مختلفې دعوې یې وکولې یو ځل یې دعوه وکوله چې دی عیسی دی ، بل ځل یې دعوه وکوله چې دی پیغمبر دی او ده ته له اسمان څخه وحی راځي او یو ځل یې خلکو ته وویل چې ماته الله ویلي دي چې زه به اتیا کاله ژوند کوم څه ملګري یې پیدا کړل او تا بعداران یې پیدا کړل او یوه ډله یې پیدا کړه چې قادیانیان ورته ویل کیږي دده کلي قادیان ته یې نسبت کیږي او دده ډلې ته احمدیان هم ویل کیږي دده په نوم کې الاحمد ټکي ته یې نسبت کوي .

علماوو ورسره مقابله وکوله او په مختلفو ډولونو سره یې ورسره مناظرې او بحثونه وکول په هغه علماوو کې یو لوی عالم ثناء الله الامرتسري وو او دده لپاره هغه ډېر سخت وو او دوی په یو بحث کې سره دعاء کړې وه چې په دوی دواړو کې څوک په نا حقه وي هغه د الله د د بل کس په ژوند کې مړ کړي او الله د په هغه باندې د طاعون بیماري ولګوي چې له هغې نه مړ شي .

یو کال وروسته قادیاني په همدې ډول بیماري باندې آخته شو دده خسر قصه کوي کله چې یوه شپه دده بیماري سخته شوه زه یې راوښ کړم زه ورغلم چې وګورم ده ته څه تکلیف دی ده راته وویل : ماته د کولیرا بیماري ده او ددېنه وروسته بیا ده څه ښکاره خبرې ونه کولې او مړ شو .

## مرزا علي محمد رضا الشیرازي

دا هم په ۱۲۶۰ هجري کې را ښکاره شو او یوه ډله یې جوړه کړه د الحرکة البابیة (دروازه یې حرکت) او ده دا تنظیم او دا خپل حرکت د یهودیانو ، روسیانو ، او انګریزانو تر سیوري لاندې جوړ کړی وو او لدې ټولو نه یې منظم کومکونه اخیستل او د هغوی غرض پدې کې دا وو چې په مسلمانانو کې به یو ډول اختلاف جوړ شي او هغه کوم اتفاق چې د مسلمانانو دی دا به ختم شي او له ده سره به ډېر کسان ملګري شي پدې سره به په مسلمانانو کې یو درز پیدا شي او په دوه برخو به تقسیم شي یوه ډله به سم مسلمانان پاتې شي او یوه ډله به لده سره ملګري شي ده دې خپل تحریک ته د دروازې نوم ورکړو او اعلان یې وکولو چې دا یوه خلاصه دروازه ده هرڅوک هر وخت کولی شي زمونږ ملګری شي هېڅ قیدونه وربانديې نشته کله چې دی مړ شو دده نه وروسته مرزا حسین ددې ډلې مشر شو او هغه ته به بهاء ویل کېدل او دغه ډله یې هم بیا په البهائیة باندې ونومولـه او دده یو کتاب هم وو چې الاقدس ورته ویل کېدو .

## محمود محمد طه السوداني

دا سوډانی لعین کذاب وو په دې تېرو یادو شویو کې یې د ټولو په آخر کې د پیغمبري دعوه وکوله او په خپلو خبرو ، تقریرونو او مقالو سره او لیکنو سره یې ډېر زیات خلک ګمراه کړل ، او ډېر زیات خلک یې په خپل دین کې شکمن او بې لارې کړل د سوډان حکومت په ۱۹۸۵ میلادي کال کې د ګمراهي ، کفر ، مرتد کېدلو په وجه باندې اعدام کړو .

نکته :

د رسول ﷺ نه وروسته چې کومو کسانو د پیغمبري دعوې کړې دي کېدای شي هغه ډېر زیات وي او داسې تعداد ته رسېدلې وي چې نه شمارل

کیږي لکن رسول الله ﷺ چې فرمایلي دي چې ډېرش کسان به د پیغمبري دعوې وکوي علماء کرام فرمایي رسول الله ﷺ ډېرش کسان هغه کسان یاد کړي دي چې شهرت ته به رسیږي او مشهور کیږي به او ډېر همکاران او ملګري به پیدا کوي .

## ٥. وینزه به خپله مالکه زیږوي

د قیامت له نښو څخه بله داده چې داسې وخت به راشي چې له یوې وینزه ښځې نه به یو ماشوم پیدا شي او دا ماشوم به ددې خپلې مور مالک وي د حضرت جبریل اوږد حدیث دی په هغه کې ویل شوي دي چې حضرت جبریل د انسان په شکل کې راغلو له رسول الله ﷺ سره کېناستو ورته یې وویل چې ماته له قیامت نه خبر راکړه اوږد حدیث دی یوه برخه یې داده :

**أن جبريل عليه السلام سأل النبي صلى الله عليه وسلم فقال: أخبرني عن السَّاعة فقال النبي صلى الله عليه وسلم: ما المسئول عنها بأعلم من السائل، قال: فأخبرني عن أماراتها، قال: أن تلد الأَمَةُ ربتها .** [1]

ترجمة : بېشکه جبریل له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکوله ورته یې وویل : ماته له قیامت نه خبر راکړه (چې څه وخت دی؟) رسول الله ﷺ ورته وویل : له چا نه چې سوال شوی دی هغه له سوال کونکي نه ښه پرې نه دی خبر بیا جبریل ورته وویل : نو بیا د قیامت له نښو خبر راکړه رسول الله ﷺ ورته وویل : (یوه نښه یې داده) چې یوه وینزه خپله مالکه و زیږوي .

او په یو روایت کی **إذا ولدت الأَمَةُ ربتها** الفاظ راغلي دي چې معنی یې همدا ده خو اوس دا چې وینزه

---

[1] صحيح مسلم

خپل مالک وزیروي ددې معنی څه ده پدې اړه د علماوو مختلف اقوال دي :

الف : معنی یې داده چې یو اصیل انسان خپله وینزه چې دی یې مالک وو د همدې ملکیت په بناء وطی کړي او له دې وطی نه هغه حامله شي بیا ماشوم پیدا کړي او دا ماشوم ځوان شي نو دا ماشوم چې د حر زوی دی نو دی هم حر دی او پلار یې اوس هم ژوندی دی او مور یې تر اوسه پورې د پلار په ملک کې ده نو دا زوی اوس د خپلې مور لپاره لکه د مالک داسې حیثیت لري .

ب : د بل قول له مخې معنی یې داده چې له وینزې ښځې نه به یو هلک پیدا شي کله چې هغه ځوان شي مور به یې ژوندۍ وي او دی به بادشاه شي نو مور به یې په رعیت کې یوه ښځه وي او بادشاه داسې وي لکه د خپل رعیت مالک چې وي . [1]

ج: د یو قول له مخې معنی یې داده چې د اصیلو ښځو خرڅول به شروع شي او یو ه اصیله ښځه به خرڅه شي لاس په لاس به شي آخر به داسې وخت راشي چې یو څوک به خپله مور واخلي او دی به یې نه پېژني چې دا زما مور ده ځکه له ده نه به دده په ماشومتوب کې بېله شوې وي .

د: د یو قول له مخې معنی یې داده چې نافرماني به زیاته شي او یو زوی به له خپلې مور سره داسې رویه کوي لکه دی چې د هغې مالک وي سخته رویه به ورسره کوي ، بې وفایي به ورسره کوي ، سپکې خبرې به ورته کوي، شکنځل به ورته کوي او حتی وهي به یې لکه د خپلې مملوکې سره چې څوک څنګه رویه کوي .

[1] شرح مسلم للنووي

ه: د یو قول له مخې ددې مطلب دا دی چې مرتبې به سره بدلې شي زوی به خپل ځان له مور نه لوړ ګڼي .

و: د یو قو له مخې یې معنی داده چې ښځه به داسې زوی و زیږوي چې هغه لوی شي هغه به داسې مالدار شي چې د هغې نوکران به داسې وي لکه دده مور چې په ځوانی کې وه .

ز: یا یې معنی داده چې هرشی او د خلکو مرتبې به سره سر چپه شي کوم کسان چې ډېر غریبان او بې وسه وو هغوی به مالداران شي .

نو چې هرڅنګه معنی یې شي علماء وایي چې دا نښه په هره معنی له مخکې نه واقع شویده او اوس هم واقع کیږي او بیا هم واقع کېدلی شي .

## ٦. بانډه چیان (کوچیان) به د تعمیرونو مالکان شي

د قیامت له نښو څخه یوه داده چې د غره خلک به ابادې ته راشي او هغه کسان چې په غرونو کې یې ډېره معمولي زندګي وه اوس به راښکته شي او په ښار کې به ښه ژوندونه شروع کړي او لوړ لوړ تعمیرونه به جوړ کړي او د تعمیرونو په لوړولو کې به له یو بل سره سیالی شروع کړي او پدې کې به له یو بل نه د مخکې کېدلو کوښښ کوي وروسته ددې چې لوڅې پښې به ګرځېدل ، او په غرونو کې به یې له حیواناتو سره ژوند وو اوس به د لوړو لوړو تعمیرونو خاوندا ن شي.

حضرت عمر بن الخطاب فرمایي مونږ له رسول الله سره په مجلس کې ناست وو چې یو کس راغلو تکې سپینې جامې یې وي تور وېښته یې وو له رسول الله نه یې د قیامت په اړه پوښتنه وکوله (حدیث یې څو ځله مخکې هم تېر شو) رسول الله ورته

وويـل : دا لـه چا څخه چې پـوښتـنـه شوېـده هغه لـه پـوښتـنې کـونـکي څخه زيـات وربـانـدې نـه دی خـبـر ..

بـيـا هغه کس ورتـه وويـل چې نـښې يـې راتـه وښايـه رسول ﷺ د قـيـامـت نـښې ورتـه ښودې او د يـوې نـښې پـه اړه يـې ورتـه وويـل:

وأن ترى الحفاة العراة العالة رعاء الشاء يتطاولون في البنيان .... الـحديـث .[1]

تـرجمة : (د قـيـامـت يـوه نـښه داده چې) لـوڅې پـښې او لـوڅ ګـرځېدونـکي خـلـک هغه چې د ګډو ساتـنـه بـه يـې کـولـه هغوی اوږده اوږده تـعمـيـرونـه جوړول شروع کړي .

پـه بـل روايـت کې حضرت ابـو هريـره فـرمـايـي رسول ﷺ هغه کس تـه وويـل چې د قـيـامـت پـه اړه يـې پـوښتـنـه کـولـه چې مـاتـه يـې هم علم نـشتـه خو نـښې بـه يـې درتـه ووايـم او بـيـا يـې پـه نـښو کې ورتـه وويـل :وإذا تطاول رعاء البهائم في البنيان ... الـحديـث .[2]

تـرجمة : او کـلـه چې د حيـوانـاتـو ساتـونـکي او څرونـکي خـلـک لـوړ لـوړ تـعمـيـرونـه جوړ کړي .

پـه بـل يـو حديـث کې رسول ﷺ فـرمـايـي :

لا تقوم الساعة... وحتي يتطاول الناس في البنيان ..[3]

تـرجمة : قـيـامـت تـر هغه وختـه پـورې نـه راځي تـرڅو خـلـک پـه تـعمـيـرونـو کې لـوړ والـی وکـوي (لـوړ لـوړ تـعمـيـرونـه جوړ کړي) .

---

[1] رواه مسلم
[2] رواه الـبخاري
[3] صحيح الـبخاري و مسلم

حضرت عبدالله ابن عباس فرمايي : رسول الله حضرت جبريل ته د قيامت د نښو په اړه خبرې کولې ورته يې وويل :

**إذا رأيت الأَمَةَ ولدت ربَّتها أو ربَّها، ورأيت أصحاب الشاء يتطاولون في البنيان**

**ورأيت الحفاة الجياع العالة كانوا رءوس الناس، فذلك من معالم الساعة وأشراطها**
**قال: يا رسول الله، ومَن أصحاب الشاء والحفاة الجياع العالة؟ قال: العرب .** [1]

ترجمة : کله د چې وليدل چې وينځې خپل مالک و زيږولو (تفصيل يې ترډې وړاندې تېر شو) او کله دې چې وليدل چې د مېږو خاوندانو لوړ لوړ تعميرونه جوړ کړل او ودې ليدل چې لوڅ وږي او ډېر اولاد لرونکي غريبان خلک د خلکو په سرونو مقرر وو نو دا د قيامت له نښو څخه دي چا ورڅخه پوښتنه وکوله : يا رسول الله دا اصحاب الشاء او لوڅې پښې وږې او غريبان څوک دي؟ رسول الله ورته وويل : عرب

امام ابن رجب ددې حديث په تشريح کې وايي : ددې حديث مضمون دا دی چې د قيامت له نښو څخه يوه داده چې کارونه به داسې چا ته وسپارل شي چې هغه به يې اهل نه وي (کار به غير اهل کار ته وسپارل شي) .

او همدا مضمون د رسول الله په يو بل حديث کې هم دی رسول الله فرمايي : **إذا وُسِّد الأمر إلى غير أهله فانتظر الساعة** (ترجمة : کله چې کار غير اهل کار ته وسپارل شو نو بيا د قيامت انتظار کوه) .

[1] **رواه الامام احمد**

ددې حديث په تشريح کې علماى فرمايي : **فإذا صار الحفاة العراة رعاء الشاء، وهم أهل الجهل والجفاء رءوس الناس وأصحاب الثروة والأموال حتى يتطاولوا في البنيان فإنه يفسد بذلك نظام الدين والدنيا .** [1]

ترجمة : کله چې لوڅې پښې مال څروونکي خلک چې د جهل او جفاء خلک وو د خلکو په سرونو مقرر شي او د مالونو خاوندان شي تردې چې لوړ لوړ تعميرونه جوړوي نو پدې سره به د دنيا او دين نظام خراب شي .

د قيامت دا نښه هم واقع شويده او واقع کيږي .

---

[1] جامع العلوم و الحكم

## ۷. خلک به یو بل سره نه پېژني

د قیامت بله نښه داده چې خلک به یو له بل نه سره نا بلد شي او نه به سره پېژني ، دخلکو په مینځ کې به پاکه مینه کمه ، د الله لپاره تعلقات به کم شي او ډېر خلک به یو له بله سره نه پېژني حضرت حذیفة فرمایي :

**سُئِل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الساعة فقال: علمها عند ربي لا يجلِّيها لوقتها إلا هو ولكن أخبركم بمشاريطها وما يكون بين يديها إن بين يديها فتنة وهرجاً، قالوا : يا رسول الله الفتنة قد عرفناها ، فالهرج ما هو؟ قال: "بلسان الحبشة: القتل، ويُلقى بين الناس التناكر، فلا يكاد أحدٌ يعرف أحد .** [1]

ترجمة : له رسول الله څخه د قیامت د وخت په اړه پوښتنه وشوه هغه مبارک وفرمایل علم یې زما د رب سره دی په وخت یې څوک نه دي خبر مګر یوازې هماغه وربانديې خبر دی لکن زه یې درته نښې ښیم او هغه څه درته ښیم چې تر قیامت وړاندې به کیږي بېشکه ترینه مخکې فتنې وي او هرج وي دوی ورته وویل : یا رسول الله فتنه خو مونږ پېژنو دا هرج څه شی دی؟ رسول الله ورته وویل : د حبشو په ژبه کې قتل ورته وایي او (بله نښه یې داده چې) د خلکو په مینځ کې به نا اشنا والی را پیدا شي نېږدې به وي چې څوک به څوک نه پېژني .

[1] رواه الامام احمد

امام هیثمي فرمايي :

وتلك العلامة ظهرت بين الخواص، فضلاً عن العوام، فالتناكر انتشر بين المسلمين انتشار النار في الهشيم، والعلاقات بين الناس بُنِيَت على المصالح الشخصية الواهية، والواقع يشير بقوة لصدق هذا الحديث، فقد أصبح كثير من الناس لا يكاد يعرف أقاربه، حتى ربما التقى الأقارب في أماكن عامة فلا يعرف بعضهم بعضاً، وأصبح الجار لا يعرف جاره، وغير ذلك من صور التفريط والتي تستشري وتنتشر فى آخر الزمان، ولعل ذلك من كثرة الفتن وانشغال الناس كلٌّ بحاله.[1]

ترجمة : او د قيامت دا نښه عوام خو پرېږده په خواصو کې هم واقع شوېده نا آشنا والی د خلکو په مينځ کې داسې خپور شي لکه اور چې په لرګيو کې خپرېږي او د خلکو په مينځ کې به علاقه يوازې د دوی تر مصلحتونو او ضرورتونو پورې پاتې شي په موجوده وخت کې چې کوم حالت دی هغه ددې حديث تصديق کوي ډېر داسې خلک شته چې خپل خپلوان تر اوسه نه پېژني حتی چې ځينې خپلوان په کوم ځای کې سره ټول شي ځينې يې ځينې نه پېژني ، ګاونډی خپل ګاونډی نه پېژني اوددې نه نور داسې د سستيا صورتونه دي چې په آخره زمانه کې به خپرېږي او کېدای شي په آخره زمانه کې ددې حالت سختېدل ددې امله وي چې فتنې به ډېرې وي او هرڅوک به په خپل ځان آخته وي .

[1] مجمع الزوائد

## ۸. سلام صرف په خاصو خلکو اچول

د قیامت بله نښه داده چې خلک به سلام یوازې په هغه خلکو اچوي چې پېژني او ورسره شناخته وي او هغه کسان چې نه یې پېژني په هغوی به سلام نه چوي حال دا چې رسول الله مونږ ته امر کړی دی چې سلام به په هغه چا اچوو چې مونږ یې پېژنو او په هغه کس چې نه یې پېژنو (پدې اړه تفصیلي خبرې ، احکام او دلائل زمونږ په یو کتاب کې چې ځانګړی د سلام د مسئلو لپاره دی (سلام) هلته تېر شوي دي) .

په یو روایت کې حضرت ابن خزیمة له حضرت ابي الجعد نه روایت کوي هغه فرمایي :**لقی عبدَ الله رجلٌ فقال السلام علیك یا بن مسعود فقال عبد الله صدق الله ورسوله سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول إن من أشراط الساعة، أن یمرَّ الرجلُ فی المسجد لا یُصلِّي فیه رکعتین وألا یسلم الرجل إلا علی مَنْ یعرف .** [1]

ترجمة : یو کس له عبد الله ابن مسعود سره یو کس مخامخ شو هغه ورته وویل ابن مسعوده په تا باندې د سلام وي حضرت عبد الله بن مسعود وفرمایل : الله او د هغه رسول رښتیا ویلي دي ما له رسول الله څخه واورېدل چې فرمایل یې د قیامت له نښو څخه یوه داده چې یو کس په جوماټ کې تیریږي او دوه رکعته مونځ به پکې نه کوي او یو سړی به سلام یوازې په هغه چا باندې اچوي چې پېژني یې .

[1] رواه الامام احمد

حضرت عبد الله ابن مسعود فرمايي : رسول الله فرمايل : **إن من أشراط الساعة: أن يُسلِّم الرجلُ على الرجلِ لا يُسلِّم عليه إلا للمعرفة.**[1]

ترجمة : د قيامت له نښو څخه يوه داده چې سړى به په يو چا باندې سلام اچوي او په هغه باندې به سلام يوازې د شناخت له امله پرې اچوي .

په يو بل حديث كې رسول الله فرمايي : **إن من أشراط الساعة إذا كانت التَّحية على المعرفة.** [2]

ترجمة : بېشكه د قيامت له نښو څخه يوه داده چې سلام يوازې په شناخت سره شي (خلک به يوازې هغه چا ته سلام اچوي چې هغه پېژني) .

امام طبراني د همدې حديث نه وروسته فرمايي :

**والتسليم على المعرفة فقط خلاف السُّنَّة، التي دعت إلى إفشاء السلام وإلقائه على مَنْ عرفت ومَنْ لم تعرف.**

ترجمة : يوازې په هغه چا باندې سلام اچول چې انسان يې پېژني د سنتو خلاف دي هغه سنت چې خلک دېته ورغواړي چې سلام په خپلو مينځونو كې عام كړئ او په هر هغه چا سلام واچوئ كه تاسې يې پېژنئ او كه يې نه پېژنئ .

---

[1] رواه الامام احمد
[2] الامام احمد

## 9. تجارت عام کېدل

د قیامت بله نښه داده چې تجارت به عام شي او اسان به شي او هرڅوک به یې کولی شي ، سهولتونه به پکې زیات شي او لکه مخکې چې وو چې چا به تجارت کولو نو له یو ښار نه به یې بل ته کوم شی راوړل ددې ضرورت به وو چې اوږده اوږده د دښتو منزلونه وکوي دا به نه وي (ددې نښې دلائل تر بله نښه لاندې را روان دي) .

## ۱۰. د ښځې له خاوند سره په تجارت کې شریک کېدل

لکه دا مخکنې نښه چې وه چې تجارت به اسان شي نو ښځې به هم پدې وتوانیږي چې په ازادانه ډول سره تجارت وکوي او تجارت به دومره سخت پاتې نه شي چې بیا یې ښځې نشي کولی اویا پکې برخه نشي اخیستلی او ښځې به د خپلو خاوندانو سره په تجارت کې شریکې شي .

حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي : رسول الله فرمایل : **إن بين يدي الساعة التسليم على الخاصة، وفشو التجارة، حتى تعين المرأة زوجها على التجارة.** [1]

ترجمة : بېشکه تر قیامت وړاندې به سلام اچول په خاصو خلکو باندې شي ، تجارت به خپور شي تردې چې ښځه به له خپل خاوند سره په تجارت کې مرسته کوي .

علماء تردې حدیث لاندې فرمایي :

د تجارت عام کېدل د هغه اسانه کېدل دي او خلک به په اسانه سره په تجارت کې مصروف کېدلی شي او ددې سهولت له امله به ښځه وکولی شي چې د

[1] رواه الامام احمد

خپل خاوند سره په تجارت کې مصروفه شي او د هغه سره به په تجارت کې مرسته کوي او په تجارت کې به ښځه داسې کار کوي لکه پخوا به چې یو سړي کولو .

او دا دواړه د قیامت نښې اوس واقع شویدي له یوه پلوه تجارت دومره اسانه شوی دی چې هرڅوک کولی شي څه نا څه تجارت وکوي په ډېرو کمو پیسو هم یو څوک کولی شي د تجارت څه برخه شروع کړي او له بله پلوه ډېرې ښځې دي چې همدا اوس د خپل خاوند سره د تجارت کارونه مخ په وړاندې بیایي او ډېرې ښځې دي چې د خپلو خاوندانو په کارخانو کې کارونه کوي .

## ۱۱. په بازار باندې د ځینې تجارانو واکمنې

بله د قیامت نښه داده چې داسې حالت به راشي چې په بازار باندې به د ځینو تجارانو واکمني وي او هغه څه به په بازار کې کیږي چې د دوی خوښه وي او د دوی په خوښه به د یو شي قیمت ښکته او پورته کیږي له حضرت عمرو بن تغلب څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله فرمایل : **إن من أشراط الساعة: أن يفشو المال ويكثر، وتفشو التجارة، ويظهر الجهل، ويبيع الرجل البيع، فيقول: لا. حتى أستأمر تاجر بني فلان، ويلتمس في الحي العظيم الكاتب فلا يوجد.** [1]

ترجمة : بېشکه د قیامت له نښو څخه دادي چې مال به خپور شي او زیات به شي ، تجارت به عام شي ، جهل به ښکاره شي ، یو څوک به یو شی خرڅوي بیا به وایي نه ... (لا یې نه خرڅوم) ترڅو زه د فلاني تجار نه اجازه واخلم (او یو وخت به داسې راشي) چې په لوی کلي کې به خلک

---

[1] **سنن النسائي**

په یو لیکونکي پسې ګرځي (چې د خرڅ سند ولیکي) او نه به پیدا کیږي .

له پورتني حدیث نه ښکاره کیږي چې داسې وخت به راشي چې په بازار کې به داسې خلک وي چې د هغوی په اختیار کې به وي چې چاته د کومې سودا اجازه ورنه کړي او دا به یې په واک کې وي چې باید یو شی پدې قیمت خرڅ نه کړل شي نو کوم چې واړه تجاران وي هغوی به بغیر د هغوی د اجازې نه سودا ، اخیستل او خرڅول نشي کولی .

سره ددې چې په ځینې احادیثو کې راغلي دي چې لیک او لوست به په آخره زمانه کې زیات شي او پدې حدیث کې دي چې په ټول لوی کلي کې به داسې څوک نه پیدا کیږي چې د خرڅ یو سند ولیکي علماء فرمایي چې همدا وخت اوس راغلی دی او وروسته هم را راوان دی د لیک او لوست اسباب ډېر زیات شوي دي کمپیوټر، پرنټر، .... لکن که اوس هم څوک په یو لوی کلي کې د داسې چا لټون وکوي چې هغه د خرڅ یو سند ولیکي او هغه شروط او قوانین چې کوم د یو سند په لیکلو کې په کار دي باید پکې عملي وي داسې څوک به پیدا نشي او د قلم لیکل ورو ورو نور هم له خلکو څخه ورکیږي مخکې به داسې وو چې د چا به لیکل زده وو هغوی به هر ډول سندونه لیکل شوای اوس که د چا لیکل هم زده وي لکن داسې شیان نشي لیکلی .

# ۱۲. بازارونه به سره نږدې شي

د قيامت بله نښه داده چې بازارونه به سره نږدې شي حضرت ابو هريره فرمايي: رسول الله فرمايل : لا تقوم الساعة حتى تظهر الفتن، ويكثر الكذب، وتتقارب الأسواق.[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو فتنې را ښکاره شي دروغ زيات شي ښارونه سره نږدې شي .

په بل روايت کې حضرت ابو هريره فرمايي : رسول الله فرمايل : يوشك أن لا تقوم الساعة حتى يُقْبَضَ العلم، وتظهر الفتن، ويكثر الكذب، ويتقارب الزمان، وتتقارب الأسواق.[2]

ترجمة : قيامت به تر هغه وخته پورې قائم نشي ترڅو علم قبض شي ، فتنې را ښکاره شي ، دروغ زيات شي ، وخت سره نږدې شي ، بازارونه سره نږدې شي .

بازارونه به سره نږدې شي ددې څه مطلب دی؟ ددې په اړه د علماوو مختلف اقوال دي دمثال په توګه :

الف : تقارب الاسواق دا معنی چې بازارونه به سره لوی شي او سره اوږده به شي نو په مينځ کې به يې فاصله کمه شي او دايې حسي او ظاهري معنی ده .

ب : تقارب الاسواق دا معنی چې د سهولتونو او آلاتو په مرسته به يو انسان په اساني سر کولی شي چې په يوه بازار کې وي او د بل بازار له حالتونو او نرخونو څخه سره خبر شي او د دواړو

[1] رواه الامام احمد
[2] رواه ابن حبان

بازارونو د حالاتو په نظر کې له نیولو سره تجاران فیصله وکوي .

ج: تقارب الاسواق دا معنی چې د اسبابو زیادت به راشي یو انسان به په اساني سره او لږ وخت کې کولی شي له یو بازار نه بل ته لاړ شي .

د : تقارب الاسواق دا معنی چې په نرخونو کې به سره وتړل شي ځکه اسباب به زیات شي په یوه بازار کې چې کوم شی ښکته کیږي نو په بل بازار کې به خلک ترینه خبریږي هلته به یې هم قیمت ښکته کیږي او دکوم شي قیمت چې په یوه بازار کې پورته ځي نو په بل بازار کې به هم پورته کیږي .

نو که د بازارونو سره نیږدې کیدل په هره معنی باندې راواخلو د قیامت دا نښه هم مخکې واقع شویده او هم اوس واقع ده او هم لګیا ده په نورو بڼو کې هم واقع کیږي .

## ۱۳. له خلکو څخه امانت پورته کېدل

اصل په انسان کې دا دی چې هغه به امانت ساتي او امین به وي لکن رسول ﷲ فرمایلي دي ې داسې یو وخت به راشي چې له خلکو څخه به دا نېک عادت پورته شي او نه به څوک د امانت ساتنه کوي او نه به یې په زړه کې د هغه د ساتنې په اړه فکر وي او په احادیثو کې رسول ﷲ ایمان او امانت سره تړلي یاد کړي دي حضرت انس بن مالک فرمایي : رسول ﷲ به چې کله هم مونږ ته خطبه ویله نو خامخا به یې راته ویل : **لا إيمان لمَن لا أمانة له، ولا دين لمَن لا عهد له.** [1]

---

[1] رواه الامام احمد

ترجمة : د هغه چاسره ایمان نشته چې د هغه په زړه کې امانت نه وي او هغه د امانت ساتنه نه کوي او د هغه چا لپاره دین نشته چې هغه لره عهد نه وي (هغه د خپل کړي عهد ساتنه نه کوي)

حضرت عروة بن زبیر په فرمایل : **ما نقصت أمانة الرجل إلا نقص إيمانه** (څومره چې د سړي امانت کمیږي (د امانت د ساتلو صفت پکې کمیږي) همدومره یې ورسره ایمان کمیږي) .

ددې امله د مؤمن په اړه دا تصور مشکل دی چې هغه د د امانت ساتنه ونه کوي حضرت سعد بن ابي وقاص خو فرمایي رسول الله فرمایل : **يطبع المؤمن على كلِّ خلةٍ غيرَ الخيانة والكذب.** [1]

ترجمة : د مؤمن په طبیعت کې هر عادت راتلی شي مګر خیانت او دروغ نه .

لکن چې آخر وخت شي رسول الله فرمایلي دي چې اخلاق به فاسدیږي او دا امانت به له خلکو څخه پورته کیږي او دا به اول هغه نېک صفت او نېک خوی وي چې د خلکو له زړونو څخه پورته کیږي .

کله چې له زړونو څخه امانت پورته شي نو دا د قیامت نښه ده ځکه د امانت له پورته کېدلو سره به هېڅ شی محفوظ نه شي او هېڅوک به په هېچا یقین نشي کولی ، د خلکو باطن به خراب شي ، هرڅوک به د خپل مقصد لپاره فکر کوي ، هرڅوک به په خپل او پردي مال کې د خپل غرض پوره کول غواړي او لدې سره به فساد عام شي او انساني ژوند به ورسره فاسد شي .

حضرت ابو هریره فرمایي : **بينما النبي صلى الله عليه وسلم في مجلس يحدث القوم؛ جاءه أعرابي، فقال: متى الساعة؟ فمضى**

---

[1] رواه البيهقي

رسول الله صلى الله عليه وسلم يحدث، فقال بعض القوم: سمع ما قال فَكَرِهَ ما قال، وقال بعضهم: بل لم يسمع، حتى إذا قضى حديثه، قال: أين أراه السائل عن الساعة؟ قال: هاأنا يا رسول الله. قال: فإذا ضُيِّعَتِ الأمانة فانتظر الساعة، قال: كيف إضاعتها؟ قال: إذا وُسِّدَ الأمرُ إلى غير أهله فانتظر الساعة .[1]

ترجمة : کله چې يو وخت رسول الله ﷺ په مجلس کې خلکو ته خبرې کولې يو کوچی ورته راغلو ورته يې وويل : قيامت څه وخت دی؟ رسول الله ﷺ خپلې خبرې رواني وساتلې ځينې خلکو وويل : د کوچي خبره يې واورېده لکن ښه پرې ونه لګېده ، ځينو وويل : نه د کوچي خبره يې وانه اورېده تردې چې رسول الله ﷺ خپلې خبرې ختمې کړې بيا يې وويل : هغه د قيامت نه پوښتنه کونکی څوک وو؟ هغه کس ورته وويل : دا دی زه يم رسول الله ﷺ ورته وويل : کله چې امانت ضائع شو نو د قيامت انتظار کوه هغه کس وويل : ضائع کول يې څنګه دي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : کله چې کار غير اهل کار ته وسپارل شو نو بيا د قيامت انتظار کوه .

رسول الله ﷺ دا بيان کړه چې د امانت ضائع کول د قيامت له نښو څخه دي او همدارنګه کار غير اهل کار ته سپارل د قيامت له نښو څخه دي لکه قضاء، افتاء، تدريس، مشري او داسې نورې وظيفې داسې چا ته سپارل چې هغه دا کولی نه شي او نه ددې اهل وي نو لدې سره په زمکه کې فساد راځي او دا وظيفې به په سمه توګه نه اداء کيږي او حق به خپل حقدار ته نه رسيږي او ټول عام مصلحتونو به پکې له مينځه لاړ شي .

رسول الله ﷺ چې څه ويلي دي هغه ټول رښتيا دي داسې د قيامت د تېرو نښو په څېر دا نښه هم

[1] رواه البخاري

رښتيا شوې او واقع شوېده او واقع کيږي نه خو اوس هرڅوک د امانت دومره ساتنه کوي لکه څنګه چې په کار ده او نه خو کار اهل کار ته په هرځای کې سپارل کيږي اکثرو خلکو ته چې کله واک په لاس ورشي نو تر خپل ماتحت لاندې چې کوم کسان داخلوي او مقرر کوي د هغوی لپاره معيار دا نه وي چې پدې کار څومره پوهيږي او څومره قادر دی بلکه معيار يې دا وي چې څومره پيسې ورکولی شي او يا له کومه لوري له ده سره ژوره پېژندګلوي لري او يا نور داسې شخصي مقاصد پکې خوندي وي .

## ١٤. امين ته د خائن او خائن ته د امين په نظر کتل

د قيامت له نښو څخه يوه داده چې حقيقتونه به خلک سر چپه کړي هغه کس چې رښتونی وي او امانت لرونکی وي او امين وي هغه ته به خلک د خائن په نظر ګوري او هغه کس چې خائن وي ، غدار وي ، حرام خور وي ، درواغجن او منافق وي په هغه باندې به خلک کلک يقين کوي او د هغه به هره خبره مني او دا د حقيقتونو سر چپه کول دي .

حضرت عبد الله بن عمر فرمايي : رسول الله فرماي : **إن من أشراط الساعة: الفحش والتَّفحُّش، وقطيعة الرحم، وتخوين الأمين، وائتمان الخائن .** [1]

ترجمة : بېشکه د قيامت له نښو څخه دادي چې فحش به زيات شي او د خپلوانو سره د خپلولي پرې کول به زيات شي ، امين ته د خائن او خائن ته د امين په نظر کتل به را پيدا شي .

په بل روايت کې حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله فرمايل : **سيأتي على الناس سنوات خداعات يصدق فيها**

---

[1] رواه الامام احمد

**الكاذب، ويكذب فيها الصادق، ويؤتمن فيها الخائن، ويُخوَّن فيها الأمين.** [1]

ترجمة : په خلکو باندې راځي داسي کلونه چې خلک پکې دوکه کيږي په هغه وخت کې به د دروا غجن سړي خبره رښتيا ګڼله کيږي او د رښتيا ويونکي خبره به درواغ ګڼل کيږي او هغه کس چې خائن وي هغه به امين ګڼل کيږي او هغه چې امين وي هغه ته به د خائن په نظر کتل کيږي .

همدارنګه حضرت انس بن مالک فرمايي رسول ﷺ فرمايل : **إن أمام الناس سنين خداعة، يكذب فيها الصادق، ويصدق فيها الكاذب، فيُخوَّن فيها الأمين، ويُؤْتَمن الخائن.** [2]

ترجمة : بېشکه د خلکو په مخه کې څه دوکه کونکي کلونه دي په هغه کې به د رښتيا ويونکي خبره درواغ ګڼل کيږي او د درواغ ويونکي خبره به منل کيږي هغه څوک چې هغه امانت ساتونکی وي هغه به خائن او هغه چې خيانت کونکی وي هغه به امين ګڼل کيږي .

پدې احاديثو کې رسول ﷺ دېته اشاره وکوله او دا خبر يې ورکړو چې تر قيامت وړاندې به دا ميزانونه سره بدل شي رښتيا ويونکي ته به خلک د درواغجن حيثيت ورکوي او خبره به يې څوک نه مني او هغه کس چې درواغ وايي د هغه خبره به خلک مني او يقين به وربانديې کوي همدارنګه هغه کسان چې امانت ساتونکي وي د هغوی په هېڅ قدر نه وي او هغوی ته به د خيانت کونکي په نظر کتل کيږي او هغه کسان چې رښتيا خيانت کونکي وي د هغوی به زيات قدر وي او خلک به يې احترام کوي او په اوس وخت کې چې اکثرو خلکو ته کتل کيږي نو همدا يې حال دی په شخصي ډول نه بلکه په کومه جامعه کې چې کوم کسان وي

---

[1] رواه الامام احمد

[2] امام احمد

هغوی نیکان وي هغوی په بدو نومونو يادول کیږي او هغوی ته سپک القاب استعمالول کیږي او هغه کسان چې په ښکاره کې د کفر په صف کې ولاړ وي او یا د کفارو تر تائید لاندې ژوند کوي او یا کومې کفري ډلې ته کار کوي د هغه به ستاینه کیږي او هغوی ښه خلک ګڼل کیږي ، هغوی د امن خلک ګڼل کیږي ، هغوی د ملک او ځای او وطن او درې جوړونکي ګڼل کیږي . فتدبر

## ۱۵. کم عقلان واکمن کېدل

د قیامت بله نښه چې واقع شوې هم ده داده چې کم عقل خلک به امیران او مشران شي واک به د کم عقلانو په لاس کې ورشي او هغوی به په خلکو حکومت کوي او دا خو معلومه ده چې د خلکو اصلاح د امیر په اصلاح کې ده او د خلکو فساد د امیر په فساد کې دی حضرت حسن بصري حضرت عمر بن عبد العزز ته په یو لیک کې لیکلي وو : **الإمام العادل يا أمير المؤمنين كالقلب بين الجوارح، تصلح الجوارح بصلاحه، وتفسد بفساده.**

ترجمة : عادل امام اې امیر المؤمنین لکه د اندامونو په مینځ کې زړه داسې دی د هغه په اصلاح کېدلو سره ټول اندامونه اصلاح کیږي او د هغه په فساد سره ټول اندامونه مفسدیږي او خرابیږي .

رسول الله له مخکې نه ددې خبر ورکړی دی چې په خلکو باندې به داسې وخت راشي چې داسې خلک به یې امیران شي چې هغوی کم عقل وي نه به د رسول الله په هدایاتو عمل کوي او نه به د هغه په سنتو باندې تلل کوي .

حضرت جابر بن عبد الله فرمایي رسول الله کعب بن عجزرة ته ویل : **عاذك الله يا كعب من إمارة السفهاء قال: ما إمارة السفهاء يا رسول الله؟ قال: أمراء يكونون بعدي لا يهتدون بهديي،**

**ولا يستنُّون بسُنَّتِي، فمَن صَدَّقَهم بكذبهم وأعانهم على ظلمهم؛ فأولئك ليسوا مني ولست منهم، ولا يردون على حوضي، ومن لم يُصَدِّقْهم بكذبهم ولم يعنهم على ظلمهم؛ فأولئك مني وأنا منهم ويردون على حوضي** [1] الحديث. ....

ترجمة : كعبه ﷺ د تا د كم عقلانو له مشري څخه وساتي هغه ورته وويل : دا د كم عقلانو مشري څنګه وي يا رسول الله؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : لما څخه به وروسته اميران وي نه به زما په هدایاتو عمل كوي او نه به زما په سنتو ځي چا چې د هغوی د درواغو تصديق وكولو او په ظلم كې يې د هغوی مرسته وكوله هغه كسان لما څخه نه دي او نه زه له هغوی څخه يم او هغه كسان به زما حوض ته نه راځي او هغه كسان چې د هغوی په درواغو كې تصدق ونه كوي او په ظلم كې له هغوی سره مرسته ونه كوي هغه كسان لما څخه دي او زه له هغوی څخه يم او هغه كسان به زما حوض ته راځي .

او لكه د قيامت په مخكنۍ علامه كې چې تېر شول چې كار به غير اهل كار ته وسپارل شي نو ددېنه همدا حالت مينځ ته راځي چې په خلكو به داسې كسان اميران شي چې هغوی به كم عقل وي خپل عقلونه به يې ددې نه وي چې څه سمه فيصله وكولی شي او له نورو خلكو سره به مشوره نه كوي په يو حديث كې رسول الله ﷺ فرمايي : **لا تقوم الساعة حتى يسود كل قبيلة منافقوها** . [2]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو د هرې قبيلې خلک د هغوی منافقين په خپلو قبيلو كې سيدان او مشران كړي .

---

[1] رواه الامام احمد
[2] رواه الطبراني

همدرانګه حضرت عبد الله بن عمر د يو حديث روايت کړی دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل :
إن من أشراط الساعة أن يوضع الأخيار ويرفع الأشرار .[1]

ترجمة : بېشکه د قيامت له نښو څخه داده چې نېکان خلک ښکته کړل شي (ډېر عزت نه ورکول کيږي او احترام يې نه کيږي) او بد خلک پورته کړل شي (د هغوی به ډېر عزت کيږي او خلک به يې زيات قدر کوي) .

او دا نښه هم له ډېر وخت نه واقع ده کم عقل اميران چاته ويل کيږي په پورته يو حديث کې تاسې وليدل چې رسول الله فرمايلي وو نه به زما په هداياتو عمل کوي او نه به زما د سنتو مطابق چليږي تاسې اوس په ملکونو کې واکمنان اندازه کړي دي هغوی څومره د سنتو برابر دي؟ څومره د رسول الله د هداياتو مطابق ژوند او فيصلې کوي؟ نو که ددې سوال صحيح ځواب لتاسې سره وي نو تاسې ته به معلومه وي چې دا نښه له څه وخت نه واقع شويده او اوس هم واقع کيږي .

## ١٦. داسې ظالمان پيدا کېدل چې خلک په دُرو وهي

يوه د قيامت نښه داده چې د داسې ظالمان به پيدا شي چې د حکومت لپاره کار کوي او له خلکو سره داسې ظالمان وي چې عوام په دُرو باندې وهي او دا هم اوس په ډېرو ملکونو کې ليدل کيږي چې له پوليسو سره داسې لرګي وي او يا د څرمنې دُري وي چې خلک وربانديې وهي او ددې پيشګويي رسول الله ډېره مخکې کړې وه له حضرت ابي امامة څخه روايت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل :

[1] رواه الحاكم

**يخرج في هذه الأمة في آخر الزمان - رجالٌ معهم سياط كأنها أذناب البقر، يغدون في سخط الله، ويروحون في غضبه.** [1]

ترجمة : ددې امت په آخر کې به داسې خلک را ښکاره شي چې د هغوی سره به ډُرې وي لکه د غوایه لکۍ د الله په غصه کې به هغوی شپه او ورځ تېروي .

حضرت ابو هریره فرمايي ماته رسول الله وويل : **إن طالت بك مدة أوشكت أن ترى قوماً، يغدون في سخط الله، ويروحون في لعنته، في أيديهم مثل أذناب البقر.** [2]

ترجمة : که چېرته د عمر اوږد شو زه فکر کوم ته به داسې خلک ووینې چې د الله په غضب کې به وخت تېروي او د الله په لعنت کې به وي په لاسونو کې به یې که دغوایه لکۍ داسې شیان وي . (چې خلک به پرې وهي بغیر لدې نه چې هغوی کومه ګناه کړې وي او یا وربانديې کوم جُرم ثابت شوی وي)

علماء وايي چې پدې اکثرو احادیثو کې اګر که پدې باندې تصریح نشته چې دوی پدې ډُرو سره خلک وهي لکن رسول الله ورته د شپې او ورځې د الله غضب یاد کړی دی پدې کې اشاره دې ته ده چې دوی به ظلم کوي او په ځینې ځایونو کې په یضربون الناس (خلک به وهي) سره هم تصریح شویده .

حضرت ابو هریره فرمايي رسول الله فرمایل : **صنفان من أهل النار لم أرهما: قوم معهم سياط كأذناب البقر يضربون بها الناس** ... الحديث . [3]

---

[1] رواه الطبراني
[2] رواه مسلم
[3] رواه مسلم

ترجمة : ده قسمه خلک د اور له اهل څخه دي ما نه دي ليدلي يوه ډله خلک دي چې ڈُرې به ورسره وي لکه د غوايه لکۍ او پدې باندې به خلک وهي ...

او په حديث کې مخکې هغه ښځې دي چې هغوی داسې جامې آغوستلې وي چې د جامو سره لکه لوڅې داسې ښکاره کيږي او هغوی سرونه لوړ لوړ تړلي وي ...

امام نووي دد حديث نه لاندې فرمايي : **وهذا الحديث من معجزات النُّبُوَّة، فقد وقع ما أخبر به رضي الله عنه، فأما أصحاب السياط فهم غلمان والي الشرطة .** [1]

ترجمة : او دا حديث د رسول ﷺ د نبوت له معجزو څخه دی (ځکه داسې خلک په پخوا وخت کې موجود نه وو) او اوس لکه څنګه چې رسول ﷺ ويلي وو په هماغه ډل خلک موجود دي د ڈُرو واله خلک د حکومت پوليس دي .

## ١٧. کم عقل سړی به د خلکو په خبرو کې خبرې کوي

د قيامت بله نښه داده چې لکه مخکې تېر شول حقيقتونه به سره سر چپه شي او يو کم عقل انسان به وي چې هېڅ سمه فيصله نشي کولی او نه ښه تميز لري چې حق او باطل سره بېل کړي هغه به د خلکو خبرې حل کوي او دخلکو په عامو خبرو کې به خبرې کوي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول ﷺ فرمايل : **قبل الساعة سنوات خدَّاعات، يُكَذَّب فيها الصادق، ويُصَدَّق فيها الكاذب، ويُخوَّن فيها الأمين، ويُؤْتَمن فيها الخائن، وينطقُ فيها الرُّوَيْبِضَة .** [1]

---

[1] **شرح مسلم للنووي**

ترجمة : تر قيامت وړاندې داسې کالونه دي چې په هغې کې به خلک په دوکه کې وي څوک چې رښتيا وايي هغه ته به ددروغو نسبت کيږي او څوک چې دروغ وايي د هغه خبره به منله کيږي ، هغه څوک چې امين وي هغه ته به د خائن په نظر کتل کيږي او هغه چې خائن وي هغه ته به د امين په نظر کتل کيږي او په هغه کلونو کې به روبيضة انسان هم خبرې کوي (په يو بل روايت کې صحابه کرامو پوښتنه هم کړې چې دا روبيضة څه شی دی ؟ رسول ﷲ يې تفسير ورته کړی دی **أنه الرجل التافه يتكلم في أمر العام** (هغه حقير ، کم عقل او سپک انسان دی چې د عامو خلکو په خبرو کې خبرې کوي))

علماء کرام فرمايي دا حالت اوس په موجوده وخت کې په مونږ راغلی دی يو کس به وي چې صرف پيسې او يا کومه حکومتي رتبه به ورسره وي او يا دکوم قوم مشري کوي او مکمل بې علمه وي او نه خو د کومې قوي رايې مالک وي او نه څه نور ښه والی لري خو بيا هم د خلکو په معاملو کې خبرې کوي او خلک يې هم خپلو جرګو او مجلسونو ته په پوره افتخار سره ورغواړي .

## ۱۸. د ارذالو او بدو خلکو پورته کېدل

د قيامت بله نښه داده چې هغه کسان چې ډېر بد او رذيل وي هغوی ته به ډېر عزت ورکړل شي او هغوی به په خلکو کې پورته شي او د مرتبو خاوندان به شي او هغه کسان چې نېک وي او ښه خلک وي د هغوی به نه څوک قدر کوي او نه به څوک ورته په کومه مرتبه باندې قائل وي حضرت

[1] رواه الامام احمد

حذيفة فرمايي رسول الله فرمايل : **لا تقوم الساعة حتى يكون أسعد الناس بالدنيا لُكَع بن لُكَع** .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو په خلکو کې بختور کس لکع د لکع زوی نه شي ... لکع څه ته وايي؟ **اللكع عند العرب العبد، ثم استعمل في الحمق والذم.**[2]

ترجمة : لکع د عربو په نيز غلام ته ويل کيږي بيا د حماقت په معنی استعمال شو او د ذم يعني رټلو په ځای کې کارول کيږي .

همدارنګه د لغت علماء فرمايي : **أن اللكع: هو "العبد أو اللئيم"، وقيل: الوسخُ، وقيل: الأحمق الجاهل.**

ترجمة : لکع غلام او يا خسيس انسان ته ويل کيږي داسې هم ويل شوي دي چې ګند او خيري ته ويل کيږي او چا ويلي چې احمق ته ويل کيږي جاهل ته ويل کيږي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله فرمايل : **لا تذهب الدنيا حتى تكون للُكَع بن لُكَعٍ.**[3]

ترجمة : دنيا تر هغه وخته پورې نه ځي ترڅو په دنيا کې لکع بن لکع را پيدا شي .

په بل حديث کې حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله فرمايل : **لا تذهب الأيام والليالي حتى يكون أسعد الناس بالدنيا لُكَع بن لُكَع** .[4]

ترجمة : دا شپې او ورځې به تر هغه وخت پورې نه ځي ترڅو په دنيا کې تر ټولو خلکو څخه نېک

---

[1] رواه الترمذي
[2] تحفة الاحوذي
[3] رواه الامام احمد
[4] رواه الطبراني

بـخت هغـه كس شي چې لـكع بـن لـكع وي (مـعـنـى يـې لـږ مـخكې تـېـره شـوه) .

كـه پـه اوس وخت كـې ډېـرو خـلـكـو تـه وكـتـل شي چې د هغـوى عزتـونـه دي او د هغـوى ښه ژونـدونـه دي او خـلـك د هغـوى ښه قـدر كـوي نـو انـسان بـه پـوه شي چې دا د همدې مـوجـوده وخت خبـره كـوي بـلـكـه د هغـه وخت خبـره كـوي چې لـه ډېـره وختـه را شروع شوى دى خـلـك د هغـه چا قـدر كـوي چې د مـال خـاونـد وي او يـا پـه حكـومـتـي سطحه بـانـدې د كـومـې ښې رتـبـې خـاونـد وي پـه لاس كـې يـې څه قـدرت وي پـاتـې شـوه دا چې هغـه كس د عزت قـابـل هم دى او كـنـه دېـتـه يـې هېڅوك فـكـر او تـوجـه نـه كـوي .

## ١٩. د نـيـكـانـو هلاكت او د بـدانـو ښكـاره كـېدل

د قـيـامـت لـه نـښو څخه بـلـه داده چې پـه دنـيـا كـې څومـره شريـفـان خـلـك وي هغـوى بـه لـه دنـيـا څخه لاړ شي او پـه دنـيـا كـې پـه خـلـكـو كـې بـه هغـه كـسان مـخه او شهرت پـيـدا كـړي چې هغـوى بـالـكـل د ښكـتـه شخصيت خـلـك وو او خسيس خـلـك وو .

پـه يـو حديـث كـې رسول الله ﷺ فـرمـايـي :

والذي نفس محمد بيده، لا تقوم الساعة حتي... وذكر منها: "ويهلك الوعول، ويظهر التحوت، فقالوا: يا رسول الله، وما الوعول وما التحوت؟ قال: الوعول وجوه الناس وأشرافهم، والتحوت الذين كانوا تحت أقدام الناس لا يعلم بهم .[1]

تـرجمـة : زمـا د پـه هغـه ذات قسم وي چې د محمد نـفـس د هغـه پـه لاس كـې دى قـيـامـت تـر هغـه وختـه پـورې نـه رارځي تـرڅو ... بـيـا يـې څه نـښې يـادې كـړې او يـوه يـې پـكـې دا يـاده كـړه چې وعول بـه

[1] رواه الحاكم في المستدرك

هلاک شي او تحوت به را ښکاره شي صحابه وو ورته وویل : یا رسول ﷲ دا وعول او تحوت څه شی دي؟ رسول ﷲ ورته وفرمایل : وعول هغه خلک دي چې د عزت خاوندان وې او شریفان وي او تحوت هغه خلک دي چې د خلکو تر پښو لاندې به وو او څوک به پرې نه وو خبر.

یعني د ډېرې ښکته مرتبې خلک به وي هغوی به را ښکاره شي او شریفان خلک به له مخې لرې او ختم شي .

علماء وایي چې اوس وګورئ چې په دنیا کې څومره مشهور خلک دي ډېر کم داسې دي چې هغوی نېکان دي بلکه کوم چې شریف خلک دي هغوی چې کله یو وفات کیږي په ځای یې بل شریف نه پیدا کیږي او کوم چې اوس مشهور دي اکثر یې ددې قابل نه دي چې دومره مشهور شوي وای او د هېڅ عزت خاوندان نه دي او نه د دومره ښې مرتبې قابل خلک دي .

# ۲۰. په تور رنګ وېښته رنګول

رسول الله د قیامت بله نښه دا یاده کړېده چې خلک به خپل سپین وېښته په تور رنګ رنګوي سره ددې چې رسول الله ورڅخه منع کړېده رسول الله په یو حدیث کې ویلي دي چې دا سپین رنګ بدل کړی لکن له تور رنګ نه ځان وساتئ خو بیا به هم ځینې خلک تور رنګ استعمالوي حضرت عبد الله ابن عباس فرمایي رسول الله فرمایل : **"یکون قوم یخضبون في آخر الزمان بالسواد کحواصل الحمام لا یریحون رائحة الجنة.** [1]

ترجمة : په آخره زمانه کې به داسې خلک وي چې رنګوي به د سر او یا ږیري سپین وېښته په تور رنګ سره لکه د کوترو سینې (چې اکثر تورې وي) هغوی ته به د جنت بوی نه ور رسیږي.

د کوترو د ګېډو یا سینو په شان تور رنګ ورکول یاد کړل شوي دي پدې اړه علماء فرمایي : **کحواصل الحمام: أي کصدورها ؛ فإنها سود غالبا ، وأصل الحوصلة : المعدة ، والمراد هنا: صدره الأسود ، قال الطیبي : معناه کحواصل الحمام في الغالب ؛ لأن حواصل بعض الحمامات لیست بسود .** [2]

ترجمة : حواصل الحمام یعني د هغوی سینې ځکه هغه هم اکثر تورې وي او په اصل کې الحوصلة معدې ته وایي او مطلب یې دلته سینه دی چې توره وي امام طیبي فرمایي د حدیث معنی ده چې لکه د کوترو سینې چې غالباً تورې وي ځکه د ځینې کوترو سینې تورې نه وي .

دا د قیامت نښه ده او موجوده ده ډېر خلک دي چې هغوی خپل وېښتان د رنګ په واسطه هر وخت تور ساتي او له ډېره وخته واقع شویده او اوس

1 رواه النسائي
2 عون المعبود

هم واقع کیږي او په آینده کې به هم وي خو دا چې اوس د وېښتو د تورولو په اړه دومره سخت وعید دی پدې اړه امام نووي فرمايي :

**يحرم خضابه بالسواد على الأصح، وقيل: يكره كراهية تنزيه، والمختار التحريم؛ لقوله : واجتنبوا السواد .** [1]

ترجمة : په تور رنګ باندې وېښته رنګول د صحيح مذهب له مخې حرام دي او چا ويلي دي چې مکروه دي په کراهيت تنزيهي سره خو غوره خبره داده چې حرام دي لکه رسول ﷲ چې فرمايلي دي : له تور رنګ نه ځان وساتئ .

امام عبد الرحمن الجوزي فرمايي :

**يحتمل أن يكون المعنى لا يريحون رائحة الجنة لفعل يصدر منهم، أو اعتقاد لا لعلة الخضاب.**

ترجمة : احتمال لري چې معنى يې دا وي چې دوى ته به د جنت بوى د هغه عمل له امله نه رسيږي چې دوى يې کوي (دا تور رنګ يې صرف يوه نښه ده) او يا به د کومې عقيدې له امله چې دوى يې لري نه د تور رنګ له امله (يعني دده له نظره تور رنګ دومره لويه ګناه نه ده چې رسول ﷲ ورته دومره سخت وعيد ذکر کړي) .

[1] **شرح مسلم للنووي**

## ۲۱. د ښځو زیاتېدل او د سړیو کمېدل

بله د قیامت نښه داده چې په تعداد کې به سړي کم او ښځې به زیاتې شي چې کله د نارینه وو او ښځینه وو نفوس و ګڼل شي نو په تعداد کې به ښځې تر سړیو زیاتې وي .

حضرت انس بن مالک فرمایل زه درته نن یو داسې حدیث وایم چې لما نه وروسته به یې هېڅوک هم درته ونه وایي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمایل : د قیامت له نښو څخه دادي چې علم به کم شي ، جهل به زیات شي ، زنا به ښکاره شي ، ښځې به زیاتې او سړي به کم شي تردې چې د پنځوسو ښځو لپاره به یو سړی وي چې د هغوی ساتنه او پالنه به کوي .

علماء فرمایي چې کېدای شي ددې وجه دا وي چې جنګونه به زیات وي او د سړیو مرګ به زیات وي او ښځې چې جنګونو ته نه ځي نو دوی به کمې مړې کیږي او ځینې وایي چې دا د الله نظام دی چې څرنګه یې هغه چلوي د هغه اختیار دی په آخره زمانه کې به هغه ذات د نارینه وو پیدا کېدل کم کړي او د ښځو به زیات کړي الله په خپل کار ښه پوهیږي د حضرت حافظ ابن حجر هم همدا وروستنۍ رایه خوښه ده هغه مبارک فرمایي :
والظاهر أنها علامة محضة لا لسبب آخر، بل يُقدِّر الله في آخر الزمان أن يقل مَن يولد من الذكور، ويكثر من يولد من الإناث. هذا والله أعلى وأعلم[1] .

ترجمة : ظاهره خبره داده چې دا صرف یوه علامه ده د کوم بل سبب له امله به داسې نه کیږي

[1] فتح الباري

بلکه الله په آخره زمانه کې داسې مقدره کوي چې نارينه به کم او جينکۍ به زياتې پيدا کوي .

## ۲۲. اهل الروم به زيات او عرب به کم شي

دا هم يوه د قيامت نښه ده چې عرب به کم شي او اهل الروم به زيات شي او په اهل الروم کې ټول آروپايان ، امريکايان او انګريزان داخل دي او دوی ته روميان ويل کيږي نسبت يې اصفر بن روم بن عيصو بن اسحاق بن ابراهيم ته کيږي ددې امله دوی ته بنو اصفر هم ويل کيږي .[1]

حضرت مستورد بن شداد حضرت عمرو بن العاص ته وويل : **تقوم الساعة والروم أكثر الناس** (ترجمة : قيامت به هغه وخت راځي چې روم په ټولو خلکو کې زيات وي) حضرت عمرو بن العاص ورته وويل : ته وګوره دا څه وايې؟ حضرت مستورد بن شداد ورته وويل زه درته هغه څه وايم چې ما له رسول الله څخه آورېدلي دي .

په يو روايت کې حضرت ام شريک فرمايي چې دې له رسول الله څخه واورېدل چې هغه مبارک فرمايل : **ليفِرَّن الناس من الدَّجَّال في الجبال** (ترجمة : داسې وخت به راشي چې خلک به له دجال نه غرونو ته تښتي) حضرت ام شريک ورته وويل : يا رسول الله پدې وخت کې به عرب چېرته وي؟ رسول الله ورته وويل : **هم قليل** (دوی به کم وي) .[2]

او ځينې علماء وايي دا چې رسول الله فرمايلي دي **الروم أكثر الناس** (روميان به په ټولو خلکو کې زيات وي) معنى يې داده چې د آروپايانو ژبه به

---

[1] التذکرة للقرطبي
[2] رواه مسلم

سرایت وکوي هغه به خلک تر عربي نه زیاته خوښوي نو لدې سره به د هغوی عادات او رواجونه هم په خلکو کې عام او له عربو څخه زیات شي .

که په هره معنی یې راواخلو اوس انګریزان تر او آروپایان تر عربو زیات دي چې په اوس وخت کې د ژبو په حساب باندې مونږ نفوسو وګورو نو د عربي ژبې فیصدي په نسبت نورو ژبه ته ډېره کمه وي نو معنی دا چې د رسول ﷺ پیشګوي رښتیا شوېده او د قیامت یوه نښه هم واقع شوېده .

## ۲۳. قاریان به زیات او علماء به کم شي

د قیامت بله نښه داده چې قاریان به زیات شي ډېر کسان به وي چې قرآن کریم به لولي لکن په هغه باندې به ډېر کم کسان پوهیږي او ډېر کم کسان به وربانده عمل کوي حضرت ابو هریره فرمایي رسول ﷺ فرمایل : **سیأتي على الناس زمانٌ تكثر فيه القرَّاء، ويقل فيه الفقهاء** ... الحدیث .

ترجمة : په خلکو باندې به داسې یو وخت راشي چې قاریان به پکې زیات شي او علماء به پکې کم شي . بیا مخکې په همدې حدیث کې رسول ﷺ فرمایي : **ثم يأتي بعد ذلك زمانٌ يقرأ القرآن رجالٌ لا يجاوز تراقيهم** ... الحدیث .[1] (ترجمة : بیا به په خلکو داسې وخت راشي چې دوی به تلاوت کوي لکن د دوی له ستوني څخه به نه ښکته کیږي یعني صرف په ژبه باندې به یې تلاوت کوي او عمل به وربانده نه کوي) .

د قیامت دا نښه هم په سترګو ښکاره کیږي چې واقع شوېده په اوس وخت کې صحیح علماء ډېر کم

[1] رواه الحاکم

دي اکثرو خلکو ته چې د عالم خطاب هم کیږي رواجي کیږي او کوم کسان چې ښه علماء دي په هرځای کې د ګوتو په شمار دي او پاتې نور قاریان ماشاء الله ښه زیات دي خو اکثریې داسې دي چې نه د قرآن کریم د مبارکو آیتونو له معنی خبر وي او نه له هغه څخه مطلب را ویستلی شي او نه وربان‌دې عمل کوي ...

## ۲٤. په قرآن کریم باندې مزدوري اخیستل

د قیامت بله نښه داده چې قرآن کریم قرائت او د هغه تر نورو خلکو پورې رسول یو ډول عبادت دی او اصلي خبره داده چې عبادتونه صرف ددې لپاره کیږي چې هغه بله دنیا وربان‌دې ښائسته کړل شي او د الله رضا وربان‌دې حاصله کړل شي او ددې سبب شي چې په انسان باندې د الله رحمت وشي لکن د قیامت نښه ده چې داسې وخت به راشي چې داسې خلک به را پیدا شي چې هغوی به پدې کې کوښښ کوي چې ښه تلاوت وکوي او خپل اوازونه ښائسته کړي او د مشرانو خلکو په فاتحه او نورو مجلسونو کې ښه تلاوت وکوي او خلک دده ستاینه وکوي او ده ته پیسې ورکړي حضرت عمران بن حصین په یو سړي باندې تېرېدلو چې هغه تلاوت کاوه کله یې چې تلاوت ختم کړو نو له خلکو نه یې څه مال وغوښت حضرت عمران بن حصین وفرمایل : **إنا لله وإنا إليه راجعون، إني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: مَن قرأ القرآن فليسأل الله تبارك وتعالى به، فإنه سيجيء قوم يقرؤون القرآن يسألون الناس به.** [1]

ترجمه : انا لله و انا الیه راجعون ما له رسول الله څخه واورېدل چې هغه مبارک فرمایل : چا چې د قرآن تلاوت وکولو نو په هغه تلاوت سره د

---

[1] **رواه الامام احمد**

لـه ﷲ څخه سوال وکوي ځکه داسې يو وخت به راشي چې د قرآن کريم تلاوت به کوي او بيا به له خلکو نه سوال کوي .

حضرت جابر بن عبد ﷲ فرمايي : **خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن نقرأ القرآن، وفينا الأعرابي والعجمي، فقال: اقرءوا، فكل حسن، وسيجيء أقوام يقيمونه كما يقام القدح، يتعجلونه ولا يتأجلونه .** [1]

ترجمة : مونږ ته رسول ﷲ را ووتلو مونږ قرآن لوستلو په مونږ کې کوچيان هم وو او عجم هم وو رسول ﷲ وفرمايل : ټول ښه دي او يو وخت به داسې راشي چې هغوی به يې په ښه کولو کې ډېر کوښښ کوي (ډېر کوښښ به کوي چې ښه تلاوت وکوي) لکن دوی به يې اجر زر غواړي او اجر ته به يې صبر نه کوي (معنی دا چې په دنيا کې به يې اجر اخلي قرآن کريم به لولي او له خلکو نه به پيسې غواړي او ديته به صبر نه کوي چې ﷲ يې په آخرت کې اجر ورکړي) .

د حضرت سفيان ثوري سره په مجلس کې به د ضرير په نوم يو کس کېناستلو کله به چې د رمضان مياشت وه دا ضرير به تلو کليوالو علاقو ته هلته به يې خلکو ته مونځ ورکولو او په مانځه کې به يې ورته قرآن کريم ختمولو هغوی به ورته پيسې ورکولې او جامې به يې ورکولې او نور کمکونه به يې ورسره کول يوه ورځ حضرت سفيان په مجلس کې وويل : **إذا كان يوم القيامة أثيب أهل القرآن من قراءتهم، ويقال لمثل هذا: (وأشار على الرجل الضرير) قد تعجَّلت ثوابك في الدنيا.**

ترجمة : کله چې د قيامت ورځ شي نو د قرآن کريم اهل ته (قاريانو او تلاوت کونکو ته) به

[1] رواه ابو داود

الله د دوی د قرا ئتونو ثواب ورکړل شي او ددې په شان (اشاره يې ضرير ته وکوله) کسانو ته به وويل شي تا خپل ثواب په دنيا کې له مخکې نه اخيستی دی.

ضرير ورته په ډېره حيرانتيا سره ووېل: اې ابا عبد الله زه لتا سره په مجلس کې ناست يم او ته ماته داسې وايې؟ حضرت سفيان ثوري ورته وويل: هو! زه لدې ډارېږم چې د قيامت په ورځ به ماته وويل شي دا کس لتا سره په مجلس کې ناست وو او تا ورته نصحيت نه کاوه.

حضرت ميمون بن مهران به فرمايل: **يا أصحاب القرآن! لا تتخذوا القرآن بضاعة تلتمسون به الربح في الدنيا، اطلبوا الدنيا بالدنيا، والآخرة بالآخرة.**

ترجمة: اې د قرآن کريم کسانو له قرآن څخه داسې څه سامان مه جوړوئ چې په دنيا کې وربانديې گټې کوئ دنيا په دنيا سره طلب کړئ او آخرت په آخرت سره.

اوس دلته دوه صورتونه دي:

لمړي هغه صورت دی چې يو څوک د ديني علم طلب او يا دديني علم تدريس ددې لپاره کوي چې دنيا وربانديې وگټي دا خو د ټولو علماوو په نظر په اتفاق سره ناروا دی او په يو اوږده حديث کې رسول الله فرمايلي دي چې داسې عالم به راوستل شي چې د الله لپاره يې زده کړه او تدريس نه وو کړی نو په اور کې به واچول شي او دا خلک په آخرت کې ددې تعليم او تعلم په بدل کې د هېڅ ثواب مستحقين نه دي.

دوهم صورت دادی چې يو څوک دا تعليم او تعلم د دنيا لپاره نه بلکه د الله د رضا لپاره يې کوي خو د ژوند مشکلاتو له امله دېته اړ وي چې له

خلکو پیسې او تنخوا واخلي نو پدې کې اختلاف دی حضرت امام ابوحنیفه امام زهري اسحاق او په یو قول کې امام احمد فرمايي چې د اپیسې اخیستل ، تنخوا اخیستل ناروا دي او هغه څوک چې دیني شونه او دیني زده کړه کوي پدې د تنخوا نه اخلي او د خپلو مشکلاتو لپاره د څه بل حل را وباسي لکه اکثرو پخوانیو علماوو به همداسې کول .

لکن نور علماء لکه امام شافعي امام مالک او په یو قول کې امام احمد او د حنفي مذهب وروستني علماء ، امام عطاء ، ابي قلابة ، ابي ثور ، امام ابن حزم، امام بغوي، امام مناوي ، امام قرطبي، امام نووي ، امام ابحجر عسقلاني ، الصنعاني، المبارکفوري وايي چې روا دي خو د سلفو طريقه نه ده او غوره خبره نه ده .

## ۲۵. د کفارو د عادتونو او رواجنو متابعت کول

د قيامت بله نښه داده چې مسلمانان به د کفارو رواجونه را ونيسي او په هغوی پسې به په خپلو کارونو او ژوند کې متابعت وکوي او هغه څه به وکوي چې هغوی يې کوي دا متابعت او رواج که په جامه کې وي ، که د دنيا په کارونو کې وي ، که په محفلونو کې وي ، او که بل داسې کار وي اسلام مونږ ته ددې هدايت کوي چې حتی په عبادت کې به هم له يهودو او نصاراوو سره مخالفت کوو لکن بيا هم د قيامت په نښو کې يوه داده چې همدا مسلمانان چې اسلام يې د يهودو او نصاراوو او نورو کفارو سره له مشابهت کولو نه منع کوي دوی به ورسره مشابهت کوي حضرت ابو هريره فرمايي رسول ﷲ فرمايل : **لا تقوم الساعة حتى تأخذ أمتي**

بأخذ القرون قبلها شبرا بشبرٍ، وذراعاً بذراعٍ، فقيل: يا رسول الله، كفارس والروم؟ قال: ومَن الناس إلا أولئك .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو زما امت هغه څه وکوي چې پخوانيو به کول لوېشت په لوېشت او ګز په ګز چا ورته وويل يا رسول الله د هغه خلکو کارونه لکه فارس او روم؟ رسول الله وويل : خلک زه همدوی شيم .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله فرمايل : لتتبِعُنّ سنن الذين مَن قبلكم شبراً بشبرٍ، وذراعاً بذراعٍ، حتى لو دخلوا في جحر ضب لتبعتموهم، قلنا: يا رسول الله، اليهود والنصارى؟ قال: فمَن؟ .[2]

ترجمة : تاسې به د هغه کسانو متابعت کوئ چې لتاسې نه مخکې وو لوېشت په لوېشت او متر په متر تردې که هغوی د سمسارې په سوري کې هم ننوزي تاسې به ورپسې وئ مونږ ورته وويل : يا رسول الله تاسې يهود او نصارا شيئ؟ رسول الله وويل : نو بيا څوک؟ (يعني همدوی شيم) .

حضرت ابو واقد الليثي فرمايي : أنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم لمَّا خرجَ إلى حُنَيْن مرَّ بِشجرةٍ للمُشركينَ يقالُ لها: ذاتُ أنواطٍ يُعلِّقونَ عليها أسلحتَهم، فقالوا: " يا رسولَ اللهِ؛ اجْعلْ لنا ذاتَ أنواطٍ كما لهمْ ذاتَ أنواطٍ، فقَالَ النَّبيُّ صلى الله عليه وسلم: سُبحانَ اللهِ! هذا كما قال قومُ موسى: ( اجْعَل لَّنَا إِلَهاً كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ) ، والَّذي نَفْسي بيدِهِ لتركَبُنَّ سُنَّةَ مَن كانَ قبلكُمْ .[3]

ترجمة : کله چې رسول الله د حنين جنګ ته ووتلو د مشرکينو له يوې ونې سره تېر شو چې ذات انواط يې ورته ويل او پدې کې به مشرکينو خپلې

---

[1] رواه البخاري
[2] رواه البخاري
[3] رواه الترمذي

اسلحې ځوړند کولې دوی ورته وویل : یا رسول الله
مونږ ته هم داسې ذات انواط جوړه کړه لکه د
دوی چې ذات انواط دی رسول الله ورته وویل :
سبحانه الله دا خو داسې خبره ده لکه د موسی
قوم چې حضرت موسی ته کوله ورته یې ویل یې
لکه د دوی چې خدایان دي داسې مونږ ته هم
خدایان جوړ کړه زما د په هغه ذات قسم وي چې
زما روح د هغه په لاس کې دی تاسې به د هغه
کسانو په لاره ځئ چې لتاسې نه وړاندې وو .

او دا نښه اوس او له مخکې نه واقع شویده په
اکثر اسلامي خلکو کې که ناریینه دي او که ښځینه
دي د دوی د رواجونو متابعت کوي او په هرڅه کې
د دوی تقلید کوي که په خوراک کې وي که په
جامه کې وي او که په نورو رواجونو کې وي .

## ۲٦ . قوي به ضعیف وخوري

بله د قیامت نښه داده چې قوي به را پورته
کیږي ضعیف به خوري او پدې سره به ضعیفان درجه
په درجه سره ختمیږي حضرت عائشه فرمایي رسول
الله یوه ورځ زما کوټې ته را ننوتلو او فرمایل
یې : يَا عَائِشَةُ، قَوْمُكِ أَسْرَعُ أُمَّتِي بِي لَحَاقًاقَالَتْ: فَلَمَّا جَلَسَ، قُلْتُ: يَا
رَسُولَ اللَّهِ، جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ، لَقَدْ دَخَلْتَ عَلَيَّ وَأَنْتَ تَقُولُ كَلَامًا ذَعَرَنِي،
قَالَ: وَمَا هُوَ؟ قَالَتْ: تَزْعُمُ أَنَّ قَوْمِي أَسْرَعُ أُمَّتِكَ بِكَ لَحَاقًا، قَالَ: نَعَمْ،
قَالَتْ: وَمِمَّ ذَاكَ؟ قَالَ: تَسْتَحْلِيهِمْ الْمَنَايَا وَتَنَفَّسُ عَلَيْهِمْ أُمَّتُهُمْ، قَالَتْ: فَقُلْتُ:
فَكَيْفَ النَّاسُ بَعْدَ ذَلِكَ - أَوْ عِنْدَ ذَلِكَ؟ - قَالَ: دَبي يَأْكُلُ شِدَادُهُ ضِعَافَهُ حَتَّى
تَقُومَ عَلَيْهِمْ السَّاعَةُ . [1]

ترجمة : عائشې ستا قوم به په ما پورې ډېر زر
پیوست شي (یعني قریش به ډېر زر ختم شي دا
خبره په نورو روایاتو کې هم تائید شوې ده حتی
چې په یو حدیث کې دا هم راغلي دي چې قریش خلک

---

[1] رواه الامام احمد

به له زمكې نه ختم شي او داسې يو وخت به راشي چې يوه ښځه به چېرته يوه څپلۍ وينې او وايې به دا د قريشو څپلۍ ده) حضرت عائشه فرمايي كله چې رسول الله كيناستو ما ورته وويل : يا رسول الله الله مې د لتا څخه زار كړي كله چې ته را ننوتلې يوه خبره د وكوله زه يې وډاره كړم ده مبارك وويل : كومه يوه؟ ما ورته وويل دا چې تاسې وایاست چې زما قوم (قريش) به په تا پسې ډېر زر پيوست شي هغه وويل : هو ! ما ورته وويل : دا به ولې داسې وي؟ هغه راته وويل : ځكه چې مرګ به دوی حلال وګڼي (يعني دوی به داسې وي لكه ښكار او مرګ به په دوی باندې حملې كوي) او د دوی امت به په دوی باندې حملې وكوي او دوی به پدې توګه ختم شي ما ورته وويل : نو لدې نه وروسته به دا خلک څنګه وي؟ او كه مې داسې ورته وويل : چې پدې وخت كې به بيا خلک څنګه وي رسول الله راته وويل :لكه هغه حشرات داسې وي چې وزرونه يې لا نه وي شوي چې والوزي زورور به يې كمزوري خوري تردې چې قيامت راشي .

## ۲۷. تول امتونه به په اسلامي امت حملې کوي

د قيامت بله نښه داده چې ټول امتونه به په اسلامي امت ته په يوطرف وي او له هرې خوا به پرې حملې کوي حضرت ثوبان فرمايي : رسول ﷲ فرمايل : **يُوشِكُ الأُمَمُ أَنْ تَدَاعَى عَلَيكُمْ كَمَا تَدَاعَى الأَكَلَةُ إِلَى قَصْعَتِهَا». فقال قائل: ومِن قلَّةٍ نحن يومئذٍ؟! قال: «بَلْ أَنتُمْ يَومَئذٍ كَثِيرٌ، وَلَكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ، وَلَيَنْزِعَنَّ اللهُ مِنْ صُدُورِ عَدُوِّكُمْ المَهَابَةَ مِنكُمْ، وَلَيَقذِفَنَّ اللهُ فِي قُلُوبِكُمُ الوَهَنَ». فقال قائل: يا رسول الله! وما الوَهَن؟ قال: «حُبُّ الدُّنيَا وَكَرَاهِيَةُ المَوت** .[1]

ترجمة : زر ده چې امتونه به ستاسې په مقابل کې يو بل سره را غواړي لکه خوړونکي چې يو بل سره ور غواړې کاسې ته (يعني په تاسې به داسې را ټولېږي لکه خوراک کونکي چې په کاسه باندې ور ټولېږي) يو کس وويل : يا رسول ﷲ دا به ددې امله وي چې مونږ به کم وو؟ رسول ﷲ وفرمايل : نه بلکه تاسې به پدې ورځ ډېر وئ لکن تاسې به داسې وئ لکه هغه وچ شيان چې سيل يې له خپلې مخې سره پورته کوي او وړي او ﷲ به ستاسې د دښمن له سينو څخه ستاسې رعب وباسي او ستاسې په زړونو کې به وېره در واچوي يو کس ورته وويل : يا رسول ﷲ دا وهن څه شی دی ؟ رسول ﷲ ورته وويل ددنيا مينه او د مرګ نه کرکه ...

پدې حديث کې رسول ﷲ په ښکاره سره ويلي دي چې په آخر وخت کې به اسلامي امت لکه کاسه داسې وي او نور امتونه به يو بل سره را غواړي او پدې اسلامي امت به په شريکه حملې کوي علماء فرمايي که په غور سره دې حديث مبارک ته وکتل

[1] رواه ابو داود

شي نو پدې کې د يو هوښيار انسان لپاره څو درسونه دي د مثال په ډول :

لمړی .

رسول ﷺ دا خپله خبره په يوشک لفظ سره شروع کړېده او ددې معنی داده چې په نېږدې وخت کې به داسې وشي لدې لفظ نه ښکاره کيږي چې رسول ﷺ ويل غوښتل چې دا کار ډېر زر واقع کېدونکی دی لکن د رسول ﷺ په وخت کې داسې ونه شول ځکه په هغه وخت کې د رسول ﷺ ذات اقدس چې ترڅو پورې موجود وو نو د ټولو کفارو په زړونو کې الله يو ډول رعب ور اچولی وو ژوندی مثال يې د خندق غزا ده چې په زرګونو کفارو د رسول ﷺ او د مسلمانانو ختمولو ته ملا وتړله او تر مدينې منورې پورې هم را ورسېدل لکن بيا هم محدودو صحابه وو د هغوی مقابله وکوله او هغوی پدې بريالي نه شول چې د مسلمانانو صفونونو ته تر خندق را تېر شي او چې اوس انسان په هغه وخت باندې څېړنه کوي نو په ښکاره ډېره عجيبه وه چې دوی لدومره لوی پلان سره سره بيا هم ونه توانېدل ځکه چې صحابه کرام داسې کسان وو چې لکه کلک د کانې دېوال داسې ورته ولاړ وو ځکه هغوی له زړه څخه دنيا وېستلې وه او له مرګ نه يې په زړه کې وېره نه وه او هروخت چې څوک دا دوه کارونه وکوي چې له زړه نه د دنيا مينه وباسي او له زړه څخه د مرګ نه ډار وباسي نو هغوی کاميابيږي رسول ﷺ فرمايي : **لاَ تَزَالُ عِصَابَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى أَمْرِ اللهِ قَاهِرِينَ لِعَدُوِّهِم لاَ يَضُرُّهُم مَن خَالَفَهُم حَتَّى تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ وَهُم عَلَى ذَلِكَ .** [1]

ترجمة : همېشه به يوه ډله زما د امت نه وي د الله په امر به جنګيږي او دوی به په خپل دښمن

---

[1] **رواه مسلم**

غالب وي او که له دوی نه هرڅو خلک مخالفت کوي دوی ته به څه ضرر نه رسوي (د خلکو مخالفت به دوی له خپل مقصد څخه نشي منع کولی او نه به د هغوی عزائم ور سستولی شي) .

دوهم

په پورتني حدیث کې دوهم درس دادی چې رسول الله په خپل امت باندې ډېر زيات مهربان وو لکه الله چې فرمايي : بِالْمُؤْمِنِينَ رَؤُوفٌ رَحِيمٌ (په مؤمنانو باندې مهربان دی) رسول الله په ټول اسلامي امت باندې مهربان وو او د همدی امت لپاره هغه مبارک شپه او ورځ په ځان يوه کړې وه او دا حديث يې هم له شفقت نه ډک دی چې خپلو صحابه وو ته يې ويلي دي چې په دوی باندې به داسې وخت راشي ... او په ډېرو نورو داسې احاديثو کې رسول الله خپل امت ته له فتنو څخه خبرداری ورکړی دی او هغوی ته يې د فتنو په وخت کې په خپل دين او د الله په لاره باندې د استقامت نصيحت کړی دی او له فتنو څخه يې ډار کړي دي او مخکې له دې چې فتنه راشي نو د اکثرو فتنو څخه يې خبر کړي دي همداسې دا حديث هم دی .

دريم

په حديث کې اشاره ده چې دا کفار په مسلمانانو باندې کله مسلط کيږي دا ددې امله نه چې په تعداد کې به مسلمانان له کفارو څخه کم وي بلکه ښه به زيات وي لکن د دوی په مينځ کې به فتنې وي او د دوی په مينځ کې به جنګونه وي او اختلافونه به وي ، يو والی به له مينځه تللی وي او دا خبرې به هغه څه وي چې د دښمن له زړه څخه به ددوی هيبت او رعب وباسي بيا به له دوی څخه خپل دښمن نه ډاريږي نو هغوی به وربانديې زړور راځي ځکه خو يې د هغه صحابي د پوښتنې په ځواب کې چې هغه ويل آيا دا حالت به ددې امله

وي چې مونږ به کم وو؟ وفرمايل نه تاسې به ډېر وئ خو ...

## څلورم .

پدې حديث کې دا درس موجود دی چې د اسلامي امت په مقابل کې کفار ټول يو ملت دی ځکه خو رسول الله ﷺ فرمايي تداعی عليکم الامم (يعني ځينې يې نورو ځينې را غواړي چې را جمع شي) دوی که هرڅو په خپل مينځ کې اختلافونه ولري او سخت سره ضد وي لکن کله چې د اسلام ضد خبره راشي بيا دوی ټول يو دي لکه الله ﷻ چې فرمايي کله چې د دوی د مينځ خبره کوي الله ﷻ فرمايي : **وَقَالَتِ اليَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَى عَلَى شَيْءٍ وَقَالَتِ النَّصَارَى لَيْسَتِ اليَهُودُ عَلَى شَيْءٍ** (ترجمة : يهودو ويل نصارا هېڅ شی هم نه دي او نصاراوو ويل چې يهود هېڅ شی هم نه دي) لکن کله چې د مسلمانانو سره د اختلاف خبره شي نو بيا الله ﷻ فرمايي : **وَلَنْ تَرْضَى عَنْكَ الْيَهُودُ وَلاَ النَّصَارَى حَتَّى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ** (ترجمة : يهود او نصارا تر هغه وخته پورې له تا څخه نه رضا کيږي ترڅو ته د هغوی د ملت متابعت وکوې) پدې خبره کې دواړه يو شان دي .

## پنځم .

پدې حديث کې اشاره ده چې کفار د مسلمانانو سره ډېره زياته غصه کوي او په زړه کې ورته ډېره زياته کينه ساتي ځکه خو چې کله دوی په مسلمانانو را ټوليږي نو داسې وربانډې آخته کيږي لکه وږي کسان چې په کاسه څنګه را ټوليږي او د رسول الله ﷺ خبره بالکل صحيح ده تاريخ ددې خبرې ګواه دی چې دوی په تېر وخت کې په مسلمانانو څه ډول ظلمونه وکول او همدا اوس وربانډې څه ډول ظلمونه کوي او دا چې کله کفار په يوه اسلامي ملک حمله کوي څنګه له شاوخوا

نـور کفـار ورسره را ټـول کړي دا ټـول د رسـول ﷲ د خبـرې مصداق دی ... تـاسې تـه معلـوم دي چې کـلـه کفـارو پـه یـو اسلامـي مـلک حملـه کـوي څنګه نـور کفـار را غواړي چې لـه دوی سره شریـک شي ؟ فـتـدبـر .

شـپـږم .

پـه حدیـث کې اشاره ده چې کـلـه کفـار پـه کـوم اسلامـي مـلک ورځـي هغـه بـه نـیـسي او قـبضه بـه پـرې کـوي او هـلـتـه بـه پـکې فساد خپـروي او د هغـه ځـای نـه بـه ګـټـه اخلـي او فـایـده بـه تـرې پـورتـه کـوي او د هغـه ځـای مـوجـوده قـیـمـتـي شیـان بـه پـه خپـلـه ګـټـه کې کـار وي لـکـه رسول ﷲ ویـلـي دي چې داسې بـه پـه مـسلـمـانـانـو بـانـدې را ټـولـیـږي لـکـه وږي چې پـه کـاسه را ټـولـیـږي نـو چې کـلـه وږي پـه یـوه کـاسه را ټـول شي نـو څـه پـکې وکـوي؟ خـو هغـه څـه چې پـه کـاسه کې وي هغـه وخـوري او تـردومـره حده پـورې لـه هغـه شي نـه استفـاده وکـوي چې دوی یـې کـولـی شي .

اووم .

پـدې حدیـث کې د رسـول ﷲ د نـبـوت یـو دلـیـل مـوجـود دی ځـکـه رسول ﷲ دا خبـره پـداسې وخت کې کړې وه چې مـسلـمـانـان ښه پـه غلـبـه کې وو او خلـک تـرېـنـه سخت ډاریـدل پـه هغـه وخت کې چا ددې تـصور هم نـشوای کـولـی چې مـسلـمـانـان بـه دومـره ذلـیـل کـیـږي او دومـره بـه کـمزور کـیـږي لـکـه اوس چې دي لـکـن رسـول ﷲ ۱٤۰۰ کـالـه مـخکې ددې پـیـشګـویـي کـړې وه نـو دا د رسـول ﷲ پـه نـبـوت بـانـې دلـیـل دی چې دا خبـره د رسـول ﷲ خبـره نـه ده بـلـکـه د ﷲ لـه لـوري ورتـه دا علـم ورکـړل شوی وو .

آتـم .

پدې حدیث کې دا ښکاره شوېده چې د قیامت له نښو څخه یوه داده چې کفار به په مسلمانانو باندې را ټولیږي .

نهم .

پدې حدیث کې ښکاره شوېده چې رسول الله ﷺ به خپلو صحابه وو ته په څومره ښه طریقه باندې یوه خبره ورښودله چې ظاهري شیان به یې ورته په مثال کې یادول لکه پدې حدیث کې رسول الله ﷺ دوه ظاهري شیان مثال کړي دي یو یې ورته ویلي دي چې کفار به په مسلمانانو داسې را ټولیږي لکه وږي چې په کاسه باندې را ټولیږي او بل یې ورته ویلي دي چې : تاسې به په هغه وخت کې ډیر وئ خو داسې به وئ لکه د سیل په سر باندې وچ شیان چې سیل په مخه کړي وي او دا د چا د پوهولو بهترینه طریقه ده او د ښه استاذ نښه ده .

لسم .

پدې حدیث کې اشاره ده چې استاذ باید په خبرو کې د ښکاره شیانو مثالونه ورکړي او ددې لپاره چې شاګردان ښه وربانديې پوه شي باید معقول له محسوس سره ورته مشابه کړي لکه الله ﷻ چې فرمایي : وَتِلْكَ الأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلاَّ الْعَالِمُونَ.

(ترجمه : دا مثالونه دي چې مونږ یې د خلکو لپاره پیش کوو او په (حکمت د) دې نه پوهیږي مګر هغه کسان چې هغوی د علم خاوندان دي .

او دا ښه تعلیم دی چې کله انسان ته یو معقول شی ور ښودل کیږي د هغه تشبیه له یو محسوس شي سره ورکړل شي .

یولسم

په دې حدیث کې رسول الله ﷺ د بلاغت یو بل کمال کړی دی چې حدیث یې اول په ډېره اجمالي طریقه ذکر کړی دی چې فرمایلي یې دي **يُوشِكُ أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمُ الأُمَمُ...** او بیا وروسته چې کله صحابه وو تفصیل غوښتی دی نو تفصیل یې ورته کړی دی او وجه یې هم ورته یاده کړېده چې ستاسې زړونو ته به د دنیا مینه او له مرګ نه وېره در ننوزي ..... نو دا ډېره ښه د شاګرد او نوي زده کونکي د پوهولو طریقه ده چې اول خبره اجمالي ورته وکوه او که هغه پوه نه شو نو بیا ورته تفصیلي خبره وکوه .

## د ولسم

پدې حدیث کې دیته هم اشاره ده چې صحابه کرامو به کوښښ کولو چې په خبره باندې پوره خپل ځان پوه کړي ځکه خو یې د هر اړخ پوښتنه کوله او پدې حدیث کې یې هم پوښتنه کړېده چې یا رسول الله ﷺ دا به زمونږ د کمبود وجه وي چې کفار به په مونږ را ټولیږي؟ پدې کې دېته اشاره ده چې صحابه وو دا فکر کاوه چې کېدای شي دا حالت زمونږ په وخت کې راشي باید مونږ پدې پوه شو چې ولې راځي او باید مونږ په هغه وخت کې څه وکوو ...

## دیارلسم .

پدې حدیث کې دیته اشاره ده چې برلاسی او کامیابي پدې کې نه ده چې څوک ډېر وي او ډېری خامخا بری نه وي بلکه د کامیابي مدار د الله په مرسته او کمک سره دی نو ځکه کله چې دوی پوښتنه وکوله چې آیا په هغه وخت کې چې مونږ مغلوب وو نو وجه به یې زمونږ کمښت وي؟

رسول الله ﷺ ورته وویل : نه په هغه وخت کې به تاسې ډېر وئ ... او ډېر ځله چې د الله ﷻ مرسته

او تائید له مسلمانانو سره ملګری شوی دی نو دوی غالب شوي دي د اسلام په تاریخ کې یې ژوندی مثال د بدر واقعه وه چې ډېرو کمو کسانو او په نشت اسبابو سره د کفارو لوی لښکر او په هر ډول جنګي تجهیزاتو باندې مجهز لښکر ته د تاریخ تر ټولو زیاته شرموونکي ماتې ورکړه او د حنین په واقعه کې الله مسلمانانو ته فرمایي : وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُم كَثْرَتُكُم فَلَمْ تُغْنِ عَنكُم مِنَ اللهِ شَيئًا (ترجمة : او د حنین په ورځ چې تاسې خپل زیاتوالي ته خوشحال وئ خو ستاسې زیاتوالي لتاسې سره هېڅ ونه کول).

څوارلسم.

پدې حدیث کې اشاره ده چې په کوم وخت کې دا امت د کفارو لخوا ځورول کیږي او ظلم وربانده کیږي په هغه وخت کې به دا امت کم نه وي ښه ډېر به وي خو کله چې دوی له خپل دین نه فاصله پیدا کړي او ترې لرې شي نو بیا به هېڅ شی دوی ته عزت ورنه کړي .

پنځلسم .

رسول الله وفرمایل تاسې به داسې وئ لکه د سیل په سر چې وچ شیان روان وي پدې کې اشاره ده چې کله دا امت له دین نه فاصله پیدا کړي بیا به دوی سپک شي او که هرڅو زیات وي خو تیت به روان وي ، او د دښمن مخه به نشي نیولی ، په دوی کې به اتحاد نه وي ، دوی به سپک وي او هېڅ قدر او وزن به یې نه وي .

شپاړسم .

پدې حدیث کې اشاره ده چې که کفار څومره د ښو اسبابو خاوندان شي او که هرڅو زیات شي بیا هم څرنګه چې هغوی ایمان نلري ډېر زیات ډارن خلک دي ځکه خو یې وفرمایل چې دوی به سره را غواړي

او دوی به را جمع کیږي او اوس هم تاریخ پدې ګواه دی چې دوی هروخت همداسې کړي دي په یوه وړوکي ملک چې هېڅ دفاعي ترتیبات قوي نه لري کله چې دوی حمله کوي نو ټول د دنیا کفارو ته به بلنه ورکړي چې له دوی سره پدې جنګ کې شرکت وکوي دا ځکه چې دوی په اصل کې ډارن دي او الله په هغه وخت کې هم فرمایل : **لَأَنتُم أَشَدُّ رَهْبَةً فِي صُدُورِهِم مِنَ اللهِ ذَلِكَ بِأَنَّهُم قَومٌ لاَ يَفْقَهُونَ** (ترجمه : او دوی په زړونو کې له الله نه زیات لتاسې څخه ډاریږي ځکه دوی یو داسې قوم دی چې نه پوهیږي) .

## ۲۸. د مؤمنانو رښتیا خوبونه

د قیامت بله نښه داده چې مؤمنان خوبونه وینې هغه به اکثر رښتیا کیږي خوب څرنګه چې مختلف ډوله کېدلی شي ځینې یې دروا غ وي دا له شیطان څخه وي ، ځینې یې ګډ وډ شیان وي هغه د انسان د نفس له خبرو څخه وي او ځینې یې رښتیا وي دا مسلمان بنده ته زیری وي حضرت عائشه فرمایي رسول الله فرمایل : **لا يبقى بعدي من النُّبُوَّة شيء إلا المبشرات، قالوا: يا رسول الله، وما المبشرات؟ قال: الرؤيا الصالحة يراها الرجل أو تُرَي له.** [1]

ترجمة : زما نه وروسته د نبوت څخه هېڅ هم نه پاتې کیږي صرف مبشرات به وي صحابه وو ورته وویل : دا مبشرات څه شی دي؟ رسول الله وویل : نېک خوبونه دي چې یو سړی یې وینې او یا ورته لیدل کیږي .

او دا خوبونه چې ډېر رښتیا کیږي دا هم د قیامت نښه ده حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله فرمایل : **إذا اقترب الزمان لم تكد رؤيا المسلم تَكْذِب،**

---

[1] رواه البخاري

**وأصدقكم رؤيا أصدقكم حديثاً، ورؤيا المسلم جزء من خمس وأربعين جزءاً من النبوة .** [1]

ترجمة : کله چې قیامت را نیږدې شي د مؤمن خوب به تقریباً نه دروغ کیږي او په تاسې کې ډېر رښتیا خوبونه لیدونکی به هغه کس وي چې په خبرو کې ډېر رښتیا ویونکی وي .

ددې حدیث په تفسیر کې حافظ ابن حجر فرمایي : **معنى كون رؤيا المؤمن في آخر الزمان لا تكاد تكذب، أنها تقع غالباً على صفة واضحة المعنى لا يحتاج معها إلى تعبير فلا يدخلها الكذب، بل تكون صادقة غير كاذبة؛ لأنها طابقت الواقع بخلاف الرؤى الأخرى، فإنها قد يخفى تأويلها فيعبِّرها العابر فلا تقع في الواقع كما عبَّر، فتكون كاذبة غير صادقة، والحكمة في اختصاص ذلك بآخر الزمان، أن المؤمن في ذلك الوقت يكون غريباً كما في الحديث:"بدأ الإسلام غريباً وسيعود غريباً" فيقل أنيس المؤمن ومعينه، فيكرم الله المؤمن بالرؤيا الصالحة التي تثبته على الحق وتبشر به.** [2]

ترجمه : دا چې رسول ﷲ فرمايي چې د مؤمن خوب به په آخره زمانه کې تقریباً نه دروغ کیږي ددې معنی داده چې اکثر به مؤمنان داسې خوب ویني چې هغه ښکاره وي او معنی یې هم واضح وي د تعبیر کونکي تعبیر ته یې ضرورت نه وي نو ځکه د دروغو پکې د ور ننوتلو ځای نه وي بلکه رښتیا وي او دروغ نه وي ځکه له واقعیت سره یو شان وي په خلاف د نورو خوبونه چې تعبیر یې خپله ښکاره نه وي نو هغه د تعبیر کونکي تعبیر ته اړ وي نو له واقعیت سره یو شان نه وي نو هغه دروغ وي رښتیا نه وي او دا چې دا به په آخره زمانه کې ولې داسې وي؟ حکمت پکې دادی چې هغه وخت به د غربت وخت وي لکه رسول ﷲ چې فرمایلي دي : اسلام غریب شروع شوی دی او په

---

[1] **رواه البخاري**
[2] **فتح الباري**

آخر کې به بېرته غریب کیږي نو د مسلمانانو سره به مرسته کونکي او له هغوی سره الفت کونکي لږ وي نو الله به خپل نېک بندګان په ښه او رښتیني خوب سره نازوي چې لدې لارې به یې په حق باندې ټینګ او ثابت ساتي .

خو پدې کې د علماوو مختلف اقوال دي چې دا وخت به څه وخت راځي چې د مؤمن خوبونه به اکثر رښتیا وي؟

ځینې علماء فرمایي دا به هغه وخت وي چې کله د رسول الله د قول مطابق علم قبض شي او د فتنو او جنګونو له امله د شریعت نښې او علامات له خلکو ورک شي نو بیا به پاک مؤمن ته خوبونه ور ښکاره کول کیږي چې له امله به یې دی په خپل دین مستقیم پاتې کیږي .

ځینې علماء وایي دا به په هغه وخت کې واقع کیږي کله چې حضرت عیسی را ښکته شي ځکه د هغه وخت خلک به بهترین خلک وي او د صحابه وو تر وخت نه وروسته به دا وخت ډېر د ښو خلکو وخت وي خلک به رښتیا وایي او رښتیا به کوي حالات به یې ډېر ښه وي نو خوبونه به یې هم رښتیا وي او نه به دروغ کیږي .[1]

## ۲۹. د کورونو ښائسته کول

د قیامت بله نښه داده چې خلک به د کورونو په ښائسته کولو کې زیار وباسي او کورونه به رنګه جوړوي او ښائست به پکې کوي حضرت ابو هریره فرمایي : رسول الله فرمایل : **لا تقوم الساعة حتى يبني الناس بيوتاً يُوَشُّونها وَشْيَ المراحيل** .[2]

---

1 **فتح الباري**
2 **رواه البخاري**

ترجمة : قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو خلک کورونه جوړ کړي او لکه کپړه داسې یې ښکلي کړي (یعني په کورونو کې به داسې ښکلي نقشونه کوي لکه په جامه باندې چې وي) .

د رسول الله دا پیشګویي اوس رښتیا شوېده خلک په کورونو کې ښه کوښښ کوي چې ښائسته یې کړي او څومره چې کېدلی شي ښکلا پکې وکوي د کوټو په چتونو او دېوالونو کې نقشونه ، مختلف ډول رنګونه ، او قیمتي مواد پکې استعمالول، ددېنه علاوه په پردو او نورو شیانو باندې زیات مصارف کیږي .

## ۳۰. په مکه مکرمه کې تعمیرونه لوړېدل

د قیامت بله نښه داده چې د مکې مکرمې په غرونو باندې به تعمیرونه پورته شي او د مکې مکرمې په غرونو به تعمیرونه جوړ شي حضرت علی بن عطاء یې له خپل پلار نه روایت کوي هغه فرمایي ما د حضرت عبد الله بن عمرو د سپرلۍ واږې نیولې وې هغه مبارک وفرمایل : **كيف أنتم إذا هدمتم البيت فلم تدعو حجراً على حجر؟! قالوا: ونحن على الإسلام؟! قال: وأنتم على الإسلام، قال: ثم ماذا؟ قال: ثم يُبنى أحسن ما كان، فإذا رأيت مكة قد بعجت كظائم ، ورأيت البناء يعلو رءوس الجبال، فاعلم أن الأمر قد أظلك.** [1]

ترجمة : تاسې به څنګه وئ کله چې تاسې ټول کورونه وران کړئ او یو کاڼی په بل باندې پرې نه ږدئ ؟ خلکو ورته وویل : پدې وخت کې به مونږ په اسلام باندې وو؟ هغه وویل هو تاسې به په اسلام باندې وئ بیا یې وویل نور به څه کیږي؟ ده مبارک وویل ښکلې تعمیرونه به جوړ شي

[1] رواه بن ابي شيبة

کـلـه د چې مـکـه ولــيـده چې تــونــلـونـه پــکـې جـوړ وي او و دې لــيـدل چې خـلـک د غـرونــو پــه سـرونــو بــانـدې کـورونــه جـوړوي نــو تــه پــوه شـه چې وخـت را نــېږدې شـوی دی.

او اوس پــه مـکـه مـکـرمـه کې همـدا حـال دی هـرې خـوا تــه پــه غـرونــو کې تــونــلـونـه جـوړ دي او پــه مـکـه مـکـرمـه کې خـو نــېږدې غـرونـه ټـول لــه خـپـلـو ځـايـونـو څـخـه لـرې کـړل شـوي دي او کـوم چې پــاتــې دي لــوی غـرونــه دي او هـغـه ټـول لــه تــعـمـيـرونــو څـخـه ډک شـوي دي .

# ۳۱. د جوماتونو ښائسته کول

د قیامت بله نښه داده چې جوماتونه به ښائسته کول کیږي او د هغه په ښائسته کولو کې به کوښښ کیږي ، په هغه کې به نقاشي کیږي ، مختلف رنګونه به ورکول کیږي ، او تر خپلې وسې به ښکلي کول کیږي، او خلک به له یو بل سره د جومات په ښائسته کولو کې ضد کوي سره ددې چې د جومات په اړه که څوک ضد کوي نو پدې کې د ضد وکوي چې څوک په پابندي سره ورځي او څوک یې په عبادت سره ښکلی کوي .

حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله فرمایل : **لا تقوم الساعة حتى يتباهى الناس في المساجد .** [1]

ترجمة : قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو خلک د جومات په ښکلي کولو کې کوښښونه وکوي .

امام شمس الحق العظیم آبادي فرمايي : **حتى يتباهى الناس في المساجد" أي يتفاخر في شأنها أو بنائها، يعني يتفاخر كل أحد بمسجده، ويقول: مسجدي أرفع أو أزين أو أوسع أو أحسن؛ رياء وسمعة واجتلاباً للمدحة.** [2]

ترجمة : تردې چې خلک د جوماتو نو په ښایسته کولو کې زیار وباسي معنی یې داده چې فخر وکوي د جوماتونو په اړه او د جومات په تعمیر باندې یعني هرڅوک په خپل جومات فخر وکوي چې او ووایي زما جومات لوړ دی ښایسته دی ، فراخ دی او ښکلی دی دا صرف د ریاء له لورې او خلکو ته ځان د ورښکاره کولو په موخه او ددې لپاره چې خلک دده مدح وکوي .

---

[1] **سنن ابي داود**
[2] **عون المعبود**

رسول الله دا خبره په داسې وخت کې کوله چې په هغه وخت کې مسجد نبوي په ډېر ساده ډول جوړ وو او دا اوس چې څنګه جوماتونه جوړ شوي دي د داسې جوماتونو تصور هم چا نشوای کولی لکن بیا هم رسول الله دا خبره د معجزانه پیشګویي په ډول وکوله او دادي اوس یې مونږ په سترګو وینو چې رښتیا شوې او اوس چې په اسلامي ملکونو کې جوماتونه جوړیږي ډېره لویه برخه مال صرف د هغه جوماتونو په تزئین آرائش او ښکلي کولو باندې مصرف کیږي .

خو دا چې د جومات ښائسته کول په شریعت کې روا او که ناروا دي نو ځواب یې دادی چې په جومات کې صرف هغه کارونه روا دي چې ورته ضرورت وي او د مونځ کونکو لپاره یا سهولت او یا ضرورت وي پاتې شوه په ښکلي کولو یې مصارف کول ناروا دي او ددې لپاره علماوو مختلفې وجې ښودلې دي د مثال په ډول .

الف : لکه مخکې چې تېر شول د جومات ښکلي کول ددې سبب کیږي چې خلک ورباندې فخر وکوي او له یو بل نه پکې د مخکې کېدلو کوښښ وکوي.

ب : په ښکلي کولو باندې مصرف کول په اسراف کې راځي او پدې باندې هغه پیسې مصرف کیږي چې له خلکو څخه د جوړولو لپاره را ټولول کیږي او هغه پیسې چې یو څوک یې ددې لپاره چاته ورکوي چې د جومات په تعمیر کې یې مصرف کړي نو بده او نا مناسبه خبره ده چې هغه د جومات په ښکلا کې مصرف شي دا د امانت ضائع کول دي او دا کسان به د قیامت په ورځ د هغه کسانو ځواب وایي چې هغوی پیسې د جومات د تعمیر لپاره ورکړې وې او دوی د جومات په ښکلا باندې مصرف کړې ځکه پدې ښائسته کولو او ښکلي کولو کې هېڅ ضروري او شرعي خبره نشته بلکه منع هم ورڅخه شوېده .

ج : په جوماتونو کې نقشونه جوړول څه فایده نه لري بلکه تاوان یې زیات دی ډېر ځله چې د محراب لور ته په جوماتونو کې ښه او فني کار شوی وي نو د مونځ کونکې توجه ور ګرځوي او له مانځه یې نه مصروف کوي .

بلکه د جوماتونو ښکلا په مانځه تلاوت او عبادت کې ده که څوک غواړي خپل جوماتونه ښکلی کړي نو په هغه کې د ډېر مونځ وکوي او هلته د ډېر وخت مصرف کړي او هلته د ډېر عبادت وکوي دا د جوماتونو ښکلا ده او داسې څه دي چې انسان ته اوس هم په کار دي او تر مرګ وروسته هم ورته په کار دي او که څوک غواړي چې چې د جوماتونو په ښکلا کې خپل شخصي مال مصرف کړي نو بیا علماء ورته یوازې په جواز او روا والي قائل دي خو بیا هم غوره خبره یې نه ګڼي .

## ۳۲. له جوماتونو څخه د لارې کار اخیستل

د قیامت بله نښه داده چې خلک به جوماتونو ته ننوزي او بل لوري ته به تېرې وزي او دا به د لارې په ډول استعمالوي سره ددې چې جوماتونو ته باید یو څوک یوازې او یوازې د الله د عبادت ، مونځ ، ذکر او تلاوت لپاره ننوزي حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي : ما له رسول الله څخه واورېدل چې هغه فرمایل : **إن من أشراط الساعة أن يمرَّ الرجل بالمسجد لا يُصلِّي فيه ركعتين** .[1]

ترجمة : بېشکه د قیامت له نښو څخه دي چې یو څوک به په جوماتونو کې تیرېږي او په جوماتونو کې به دوه رکعته مونځ نه کوي .

---

[1] رواه ابن خزيمة

او د امام طبراني په روايت کې بيا راغلي دي چې **حتي تتخذ المساجد طُرقاً، فلا يُسجد لله فيها** (ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو د جومات نه لاره جوړه شي) يعني جومات صرف ددې لپاره استعمال شي چې خلک پکې تېر شي يعني په يو طرف ور د ننه شي او بل طرف ته ترې بهر شي.

علماء فرمايي چې دا نښه له ډېره وخته واقع شوېده خلک له جومات نه د لارې کار اخلي بلکه خبره په دې بانديې هم ونه درېده لږ نوره هم مخکې لاړه چې جوماتونه په ښائسته او ښکلي تعمير باندې جوړ شول او د چکر ځايونه شول نارينه او ښځينه هلته ورتلی شي نه يوازې مسلمانان بلکه عيسايان او نور کافران ور ننوزي د هغه د ښکلي تعمير ننداره کوي او پدې باندې هم خبره ولاړه نه ده بلکه هلته بې پردې ښځې ور ننوزي او تصويرونه پکې وباسې ...

# ۳۳. د زلزلو زیاتوالی

د قیامت بله نښه داده چې زلزلې به زیاتې شي حضرت ابو هریره فرمايي : رسول الله فرمایل :
لا تقوم الساعة حتى يُقبضَ العلم، وتكثر الزلازل .[1]

ترجمة : قیامت تر هغه وخته نه راځي ترڅو علم قبض شي او زلزلې زیاتې شي.

ددې زلزلو زیاتوالی د کفارو لپاره یو ډول عذاب وي او د مؤمنانو لپاره د مرتبو پورته کېدل وي مخکې په یو حدیث کې تېر شو هلته رسول الله فرمایل : زما دا امت مرحوم دی په دوی باندې به په آخرت کې عذاب نه وي الله دوی ته په دنیا کې عذاب ورکوي په قتل او زلزلو سره او دا په اوس وخت کې زیاتې دي او د رسول الله پیشګویي هم رښتیا شوېده او د قیامت دا نښه هم واقع شوېده اوس په سترګو ښکاره کیږي او په خبرونو کې آورېدل کیږي چې په دنیا کې څومره زلزلې کیږي .

اوس ۲۰۱٤ دی که مونږ صرف د ۲۰۱۳ کال په اوږدو کې ټولې واقع شوې زلزلې را ټولې کړو نو زمونږ کتاب ورسره اوږدېدلی شي چې صرف په یوه کال کې واقع شوېد داسې که مونږ غواړو چې د دوو ، دریو کالونو سره را ټولې کړو نو پوره کتاب ورڅخه جوړېدلی شي .

---

[1] صحیح البخاري

# ٣٤. ناڅاپي مرګ به زیات شي

د قیامت بله نښه داده چې یو دم مرګ به زیات شي ، نا ګهاني مرګ به زیات شي یو ځوک به جوړ روغ وي او یودم به یو سبب ورته را پیدا شي او په حق به ورسیږي حضرت انس بن مالک فرمایي رسول ﷺ فرمایل : **إن من أمارات الساعة أن يظهر موت الفجأة .** [1]

ترجمة : د قیامت له نښو څخه یوه داده چې نا ګهاني مرګ به (زیات) ښکاره شي .

او اوس ښکاره کیږي چې د رسول ﷺ دا پیشګویي هم رښتیا ده او همدارنګه د قیامت دا نښه هم واقع شویده مخکې به یو ځوک بیمار شو نو چې بیماري به یې سخته شوه نو هغه به وډار شو چې دا لکه چې زما د مرګ بیماري ده نو ځان به یې مرګ ته تیار کړو نېک اعمال به یې وکول ، وصیت به یې وکولو او نور داسې کارونه به یې وکول چې دده په نظر تر مرګ وړاندې کول په کار وو په اوس وخت کې خو له یوه پلوه د زړه د سکتې له امله ډېر خلک مړه کیږي او له بلې خوا د مرګ راوړونکې حادثې دومره زیاتې شوې دي چې کوم خلک سحر وختي له کوره وزي ډاډه نه وي چې ماښام ته به جوړ را ستون شي هره ورځې په دنیا کې څومره خلک د حوادثو په طرز کې مړه کیږي .

---

[1] رواه الطبراني

# ۳۵. شرک به زیات شي

د قیامت بله نښه داده چې وروسته لدې چې خلک مسلمانان شوي دي په دوی کې به شرک ، شرکي کارونه ، شرکي عقیدې او نور شیان خپاره شي او شرک هغه یوازینۍ ګناه ده چې الله یې په اړه فرمایي : إِنَّ اللَّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاء وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْمًا عَظِيمًا .[1]

ترجمة : الله دا ګناه نه بښي چې انسان ورسره شریک وګڼي او ددېنه بغیر یې چې چا ته خوښه شي ورته بښي یې او چا چې له الله سره شریک و ګڼلو ده لویه ګناه وکوله .

په بل ځای کې الله فرمایي : وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكَ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الخَاسِرِينَ .[2]

ترجمة : په تحقیق سره وحی شوې ده تاته او هغه کسانو ته چې ستا نه وړاندې وو که چېرته تا شرک وکولو نو ستا عمل به تباه شي او ته به له زیانکارانو څخه شې .

په بل ځای کې الله فرمایي : إِنَّهُ مَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ .[3]

ترجمة : بېشکه شان دادی چا چې د الله سره شریک وګڼلو الله به په هغوی باندې جنت حرام کړي ځای د ورتلو د ده دوزخ دی او د ظالمانو سره هېڅ مرسته کونکی نشته .

په بل ځای کې الله فرمایي : واعْبُدُوا اللَّهَ وَلا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا .[1]

---

[1] سورة النساء اية ٤٨
[2] سورة الزمر آية ٦٥
[3] سورة المائدة آية ٧٢

ترجمة : او د الله عبادت وکوئ له هغه سره شريک مه جوړوئ .

په بل ځای کې الله فرمايي : **قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا** . [2]

ترجمة : ته ورته ووايه چې راشئ زه تاسې ته هغه څه وښايم چې ستاسې رب حرام کړي دي هغه دادي چې تاسې به له هغه سره شريک نه منئ .

په بل ځای کې الله فرمايي : **فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلاً صَالِحاً وَلا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَداً** . [3]

ترجمة : څوک چې تمه لري چې د خپل رب سره يې ملاقات وشي نو نېک عمل د کوي او د الله سره دې هېڅ شريک نه مني .

همدارنګه ډېر احاديث پدې موضوع کې راغلي دي چې مؤمنان لدې نه ډاروي چې شرک وکوي دا شرک څه ته وايي؟ څنګه کيږي؟ قسمونه يې احکام يې د هرشي سره به ان شاء الله په خپل ځای راشي زم زم اداره په نظر کې لري چې پدې موضوع باندې ځانګړی کتاب ستاسې خدمت ته ډالۍ کړي که وخت او اسبابو موافقه وکوله زر به دا وعده درسره پوره کړي خو پدې ځای کې موضوع داده چې د شرک خپريدل او زياتېدل د قيامت له نښو څخه ده .

او په اوس وخت کې د اکثر و خلکو نه شرک واقع کيږي او پداسې توګه ترېنه واقع کيږي چې هغوی وربانديې بالکل نه وي خبر په خپل ځای کې به د تفصيل سره ان شاء الله د لوستونکي ذهن وربانديې خلاص شي د مثال په ډول:

---

[1] سورة النساء آية ٣٦
[2] سورة الانعام آية ١٥١
[3] سورة الكهف آية ١١٠

د داسې چا متابعت چې هغه د شرعي احکامو پابند نه وي او هغه په خپله خوښه یو شي ته حرام وایي او بل شي ته حلال واي انسان شرک خوا ته ور کش کوي .

د الله نه بغیر له بل چا څخه دعا غوښتل اوله بل چا څخه د مشکل حل کول غوښتل هم شرک دی او د کوم حاجت په پوره کولو او د چا د مشکل په حل کولو یوازې او یوازې الله قادر دی نه یې کوم زیارت کولی شي او نه بل کوم ولي او بزرګ .

د الله نه بغیر بل چا ته د ثواب کار کول د مثال په ډول د مړي په نوم ذبح کول ، د کوم ستوري په نوم قرباني کول ، چاته سجده کول ، د مشکل په وخت کې د الله نه بغیر بل چا ته دعاء کول چې مشکل حل کړي دا هم شرک دی .

نجومیانو ته ورتلل او د هغوی په خبرو باندې او هغه خرافات چې دوی یې د راتلونکي او یا موجوده حال په اړه وایي منل هم شرک دی .

د الله نه بغیر له بل شي نه ډارېدل چې دا به ماته ضرر را ورسوي لکه د زیارت نه خلک ډارېږي ، د کوم پخواني مړي نه ډارېږي دا هم د شرک قسم دی .

داسې نور هم ډېر ډوله شرک دی چې په مسلمانانو کې له ډېر وخت نه واقع کیږي نو دا هم د رسول الله له پیشګویانو څخه یوه ده چې رښتیا شویده او رښتیا کیمږي او د قیامت له نښو څخه ده .

## ۳٦. په شریعت باندې فیصله پاتې کېدل

بله د قیامت نښه داده چې په اسلامي احکامو او د قرآن کریم په احکامو به فیصله پاتې شي او څوک به وربانديې فیصله نه کوي او مسلمانان به داسې پاتې شي چې الله به مني لکن د هغه په احکامو باندې به فیصله نه کوي بلکه د فیصلو لپاره به دوی خپل قوانین جوړ کړي او په هغه باندي به فیصله کوي .

حضرت امامة الباهلي فرمايي رسول الله فرمايل : لتَنقضن عُرَى الإسلامِ عُروة عُروة، فكلما انتقضت عروة تَشبَّثَ الناسُ بالتي تليها، وأوَّلهن نقضاً: الحكمُ، وآخرهن: الصلاة. [1]

ترجمة : د اسلام کړی به یوه یوه ماتول کیږي کله چې یوه کړی ماته شي نو خلک به په بله کړی باندې منګولې ولګوي اول چې ماتیږي هغه به د الله په احکامو باندې حکم کول وي او آخر به یې مونځ وي .

د قیامت دا نښه له ډېره وخته واقع شوېده اکثر اسلامي ملکونه اوس په شریعت باندې فیصله نه کوي مګر په ډېرو کمو او لږو قضیو کې لکه واده ، طلاق میراث او داسې نور او په نورو ټولو قضیو کې فیصله په اساسي قانون کوم چې وضعي قانون وي او د انسانانو په لاس جوړ شوی وي هغه چې څومره ښه قانون وي ، چې څومره د خلکو خوښ وي او چې څومره ښې فیصلې پکې وي د الله تر حکم څخه نه شي ښه کېدلی په زمکه باندې د انسانانو په مینځ کې د هر ډول فیصلې لپاره تر ټولو غوره قانو اسلامي شریعت دی .

## ۳۷. مرګونه به زیات شي

د قیامت بله نښه داده چې مرګونه او قتلونه به زیات شي حضرت ابو هریره فرمايي رسول الله

[1] رواه الطبراني

فرمايل : لا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكْثُرَ الْهَرْجُ، قَالُوا: وَمَا الْهَرْجُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: الْقَتْلُ الْقَتْلُ . [1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو هرج زيات شي صحابه وو ورته وويل هرج څه شی دی يا رسول الله؟ رسول الله ورته وويل : قتل

په بل روايت کې حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله فرمايل : يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ، وَيَنْقُصُ الْعِمْلُ، وَيُلْقَى الشُّحُّ، وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ، قالوا: وما الهرج؟ قال: القتل القتل. [2]

ترجمة : (د قيامت له نښو څخه دادي چې) وخت به سره نږدې شي ، عمل به کم شي ، بخيلي به زياته شي او هرج به زيات شي صحابه وو ورته وويل : هرج څه شی دی؟ رسول الله ورته وويل : قتل .

د قيامت دا نښه په نورو ډېرو رواياتو کې راغلې ده او ذکر شوېده او د قيامت په نښو کې مهمه نښه ده او په اوس وخت کې په ډېره لوی مقدار سره رښتيا کيږي او واقع کيږي څومره قتلونه کيږي په مختلفو اسبابو سره په چاودنو سره ، په جنګونو سره مونږ يې هره ورځ آورو لکن بېرته يې هېروو ددې لپاره چې زه خپل لوستونکي ته ښکاره کړم چې د رسول الله دا پيشګويي څومره ښه رښتيا شوېده په يو څو کلونو کې په لويو جنګونو کې د شويو قتلونه مختصره شمېره ستاسې په وړاندې ايږدم چې خلکو را جمع کړي او ساتلي دي :

| تاريخ | پېښه | د مړيو تخميناً شمېره |
|---|---|---|

[1] رواه مسلم
[2] رواه البخاري

| له | تر | | لږ تر لږه | زیات نه زیات |
|---|---|---|---|---|
| 1939 | 1945 | دوهمه نړۍ واله جګړه | 40,000,000 | 85,000,000 |
| 1206 | 1368 | د مغولو فتوحات | 30,000,000 | 40,000,000 |
| 1616 | 1662 | د مینچن د چین فتح | 25,000,000 | 25,000,000 |
| 1851 | 1864 | د ټایپنګ تحریکات | 20,000,000 | 100,000,000 |
| 1914 | 1918 | لمړۍ نړۍ واله جګړه | 15,000,000 | 65,000,000 |
| 1369 | 1405 | د تیمور لنګ فتوحات | 15,000,000 | 20,000,000 |
| 755 | 763 | د ان لوشان انقلاب | 13,000,000 | 36,000,000 |
| 1862 | 1877 | د دانګان انقلاب | 8,000,000 | 12,000,000 |
| 1917 | 1921 | د شوروي مینځنۍ جګړه | 5,000,000 | 9,000,000 |
| 1941 | 1945 | د هولو کاسټ جنګونه | 4,194,200 | 17,000,000 |

| د مړيو تخميناً شمېره | | پېښه | تاريخ | |
|---|---|---|---|---|
| زيات نه زيات | لږ تر لږه | | تر | له |
| 7,000,000 | 3,500,000 | ناپلئوني جنګونه | 1815 | 1803 |
| 11,500,000 | 3,000,000 | دېرش کلنه جګړه | 1648 | 1618 |
| 7,000,000 | 3,000,000 | د زيړي لنګۍ جګړې | 205 | 184 |
| 5,400,000 | 2,500,000 | د کانګو دوهمه جګړه | 2003 | 1998 |
| 8,000,000 | 2,582,000 | (and Soviet Holodomor famine ) | 1933 | 1932 |
| 3,300,000 | 2,300,000 | سل کلنه جګړه | 1453 | 1337 |
| 100,000,000 | 2,000,000 | په امريکا کې د اروپا استعمار | 1900 | 1492 |
| 4,000,000 | 2,000,000 | فرانسوي مذهبي جګړه | 1598 | 1562 |
| 2,000,000 | 1,500,000 | د شاکا فتوحات | 1828 | 1816 |

| د مړيو تخميناً شمېره | | پېښه | تاريخ | |
|---|---|---|---|---|
| زيات نه زيات | لږ تر لږه | | تر | له |
| 2,000,000 | 1,500,000 | په افغانستان کې جګړه | 2000 | 1979 |
| 3,000,000 | 1,000,000 | د نایجیریا کورنۍ جګړه | 1970 | 1966 |
| 3,000,000 | 1,000,000 | کمبوديايي نسل کشي | 1979 | 1975 |
| 3,000,000 | 1,000,000 | صليبي جنګونه | 1291 | 1095 |
| 2,000,000 | 1,000,000 | دوهم سوډاني کورنۍ جګړه | 2005 | 1983 |
| 1,000,000 | 800,000 | Du Wenxiu Rebellion | 1873 | 1856 |
| 3,000,000 | 800,000 | د ويتنام جګړه | 1975 | 1955 |
| 850,000 | 670,000 | امريکايي کورنۍ جګړه | 1865 | 1861 |
| 2,000,000 | 600,000 | په افغانستان باندې د روسانو | 1988 | 1980 |

| تاریخ | | پېښه | د مړیو تخمیناً شمېره | |
|---|---|---|---|---|
| له | تر | | لږ تر لږه | زیات نه زیات |
| | | حمله | | |
| 1945 | 1950 | د دوهمې نړۍ والې جګړې نه وروسته د جرمن چاودنې | 500,000 | 3,000,000 |
| 1911 | 1920 | مکسیکي انقلاب | 500,000 | 2,000,000 |
| 1980 | 1988 | د ایران او عراق جګړه | 500,000 | 2,000,000 |
| 1994 | 1994 | د راونډا قتل عام | 500,000 | 1,000,000 |
| 1936 | 1939 | هسپانیایي کورنۍ جګړه | 500,000 | 1,000,000 |
| 1864 | 1867 | Circassian Genocide | 400,000 | 500,000 |
| 1950 | 1953 | کوریا یي جګړه | 400,000 | 4,500,000 |
| 1915 | 1923 | امریکا نسل وژنه | 300,000 | 1,500,000 |
| 1864 | 1870 | د پارا ګوئه جګړه | 300,000 | 1,200,000 |

| تاریخ | | پېښه | د مړیو تخمیناً شمېره | |
|---|---|---|---|---|
| له | تر | | لږ تر لږه | زیات نه زیات |
| 1655 | 1660 | Deluge | 300,000 | 400,000 |
| 1915 | 1923 | یوناني قتل عام | 200,000 | 1,000,000 |
| 1992 | 1995 | د بوسنیا نسل کُشي | 97,207 | 200,000 |
| 1971 | 1971 | په بنگلادیش کې جنگونه | 26,0000 | 3,000,000 |

دا هسې د مثال په توگه ما تاسې ته وړاندې کړل او ددېنه زیات جنگونه شوي دي او زیات تلفات پکې شیوي دي پدې لست کې تاسې گورئ چې صرف هغه جنگونه را ټول شوي دي چې د مړیو شمېره یې ډېره زیاته وي او دا شمېره په ښکاره سره دا وایي چې رسول ﷲ ۱٤۰۰ کاله وړاندې رښتیا ویلي وو چې یو وخت به داسې راشي چې قتلونه به ډېر زیات شي او دومره زیات؟

او رسول ﷲ دا هم ویلي دي چې فتنې او قتل به زیات شي حتی چې په داسې خبره به هم یو څوک قتل کیږي چې قاتل به نه پوهیږي چې ولې یې قتل کوم او نه به مقتول پدې پوهیږي چې دی ولې قتل کیږي حضرت ابو هریره فرمایي : رسول ﷲ

فرمایل : وَاَلَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ليأتينَّ عَلَى اَلنَّاسِ زمانٌ، لَايَدْرِي اَلْقَاتِلُ فِي أيِ شيء قَتَلَ، وَلَا اَلْمَقْتُولُ علي أيِ شيء قُتِلَ .[1]

ترجمة : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی په خلکو به داسې وخت راشي چې قاتل به پدې نه پوهیږي چې ده دا قتل ولې وکولو او مقتول به نه پوهیږي چې دی ولې قتل کیږي .

## ۳۸. د زنا زیاتوالی

د قیامت یوه نښه داده چې زنا به په خلکو کې زیاته شي، زنا به یو عام کار شي او زیاته به شي سره ددې چې الله فرمایي : وَلاَ تَقْرَبُواْ الزِّنَى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً .[2]

ترجمة : او تاسې زنا ته مه ور نیږدې کیږئ بیشکه دا یوه فاحشه ده او بد عمل دی .

لکن بیا هم ددومره سختې منعې سره سره بیا هم ځینې مسلمانان پدې کار آخته کیږي نو دا د قیامت له نښو څخه دي حضرت انس فرمایل : لَأُحَدِّثُنكُمْ حَدِيثًا لَا يُحَدِّثُكُمْ أَحَدٌ بَعْدِي؟ سَمِعْتُ رسول الله صلى الله عليه وسلم يَقُولُ: "مِنْ أشراط السَّاعَةِ: أَنْ يقلَّ الْعِلْمُ، وَيَظْهَرَ الْجَهْلُ، ويظهر الزِّنَى ... الحديث .[3]

ترجمة : زه نن درته داسې حدیث وایم چې زما نه وروسته به یې څوک درته ونه وایي ما له رسول الله څخه آوریدلي دي چې فرمایل یې : د قیامت نښې دادي چې علم به کم شي جهل به ښکاره شي او زنا به را ښکاره شي .

[1] مسلم
[2] سورة الاسراء آیة ۳۲
[3] رواه البخاري و مسلم

رسول الله ﷺ پداسې وخت کې دا خبره کړې وه چې په هغه وخت کې د زنا صورتونه ډېر لږ چې د اوس په نسبت سره بالکل د نشت برابر وو نو پدې کې حديث کې هم د رسول الله ﷺ په نبوت باندې دليل موجود دی چې اوس دا خبره دومره رښتيا شوېده چې اکثر مسلمانان صرف تر ميسر کېدو پورې دي او چې چا ته هم ميسر شي نو زنا ورڅخه کيږي الا ماشاء الله ... او دا خو لا پرېږده چې په اوس وخت کې خلک وربانډې فخر کوي او بيا نورو ملګرو ته قصې هم کوي په اکثرو مسلمانانو کې نه شرم پاتې شو او نه ديندارې او دا ټولې د قيامت نښې دي الله ﷻ د زمونږ ايمانونه سلامت وساتي.

## ۳۹. د شرابو حلال ګڼل

د قیامت بله نښه داده چې خلک به د شراب څښل روا ګڼي مخکې یو حدیث تېر شو په هغه کې رسول الله ﷺ فرمایلي وو **أنه سيكون في آخر الزمان أقوام يستحلون الحِر والحرير والخمر** ... الحدیث

ترجمة : په آخره زمانه کې به داسې قومونه وي چې ورېښم به (د نارینه وو لپاره) حلال ګڼي (سره ددې چې په اسلام کې د ورېښم استعمال د نارینه لپاره ناروا کړل شوی دی) همدارنګه شراب به روا ګڼي .

په یو بل حدیث کې حضرت انس بن مالک فرمایي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمایل : **لا تقوم الساعة - أو مِنْ أشراطِ السَّاعَةِ -: أَنْ يُرفع الْعِلْمُ، وَيَظْهَرَ الْجَهْلُ، ويُشرَب الخمر، ويفشو الزِّنَا، ويذهب الرجال، ويبقى النِّسَاءُ،، حَتَّى يكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً قَيِّمٌ وَاحِد** . [1]

ترجمة : قیامت نه راځي او که داسې یې وویل : چې د قیامت له نښو څخه دي دا چې علم به پورته شي ، جهل به ښکاره شي ، شراب به څښل کیږي ، زنا به عامه شي ، سړي به لاړ شي ، ښځې به پاتې شي ، تردې چې د پنځوسو ښځو لپاره به یو کس وي چې د هغوی ساتنه وکوي .

او د قیامت له نښو څخه دادي چې خلک به شراب څښي خو نوم به یې ورته بدل کړي شراب نه بلکه یو بل څه به ورته وایي لکن وي به هماغه حرام کړل شوي شراب حضرت ابو مالک اشعري فرمایي : ده له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې فرمایل یې : **ليشربن أناس من أمتي الخمر، يُسمونها بغير اسمها** . [2]

---

[1] رواه البخاري و مسلم
[2] امام احمد

ترجمة : زما د امت نه به ځينې خلک شراب څښي او بل نوم به ورته ايږدي .

## ٤٠ . د موسيقي آلات روا ګڼل

د قيامت بله نښه داده چې خلک به د موسيقي آلات روا ګڼي حضرت ابو مالک اشعري فرمايي ما له رسول الله ﷺ څخه واوريدل چې هغه فرمايل : **لَيَكُونَنَّ فِي أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْحِرَّ وَالْحَرِيرَ وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ ....** الحديث .[1]

ترجمة : زما په امت کې به داسې خلک وي چې زنا به حلاله ګڼي وريښم به حلال ګڼي (د نارينه وو لپاره) شراب او د موسيقي آلات به روا ګڼي .

حضرت سهل بن سعد فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **سيكونُ في آخر الزمان خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَمَسْخٌ، قِيل: ومتي ذلك يا رسول الله؟ قال: إِذَا ظَهَرَتْ الْمَعَازِفُ والْقَيْنَاتُ .**[2]

ترجمة : زر ده چې زما په امت کې به خسف (په زمکه ننوتل) قذف (ويشتل کېدل) مسخ (شکل بدلېدل) راشي چا ورته وويل : دا به څه وخت وي يا رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چې د موسيقي آلات را ښکاره شي او کله چې سندرې ويونکې ښځې را ښکاره شي .

علماء فرمايي چې د رسول الله ﷺ په حديث کې چې راغلي دوی به يې حلال وګڼي ددې عبارت دوه معنا ګانې دي :

١. يو دا چې خلک به دا عقيده کوي چې دا حلال دي بالکل حرام نه دي

[1] رواه البخاري
[2] رواه الطبراني

۲. خلک به وربانديږ عادت وي او د خلکو په مينځ کې به خپاره شي تردې چې نه به وربانديږ ژبې بد وايي او نه به زړونه ورڅخه نفرت کوي نو خلکو ته به يې حرمت بالکل نه محسوس کيږي .

په هره معنی باندې چې وي دا نښه اوس رښتيا شويده له يوې خوا داسې مسلمانان هم شته چې د موسيقي آلاتو ته بالکل حرام نه وايي او له بلې خوا داسې مسلمانان هم شته چې هغوی ورسره عادي شوي دي او داسې بې تکلفه يې استعمالوي لکه دا چې بالکل حرام نه وي .

# ٤١ . د سود خپريدل

د قيامت بله نښه داده چې سود به خپور شي او خلک به سود زيات کوي او خلکو ته به دا هم يو ډول ګټه ښکاره کيږي او پدې به يې پروا نه وي چې دا ناروا دی سره ددې چې په مسلمانانو باندې الله سود حرام کړی دی الله فرمايي : **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ * فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ** . [1]

ترجمة : اې مؤمنانو د الله نه ووېرېږئ او نور سود پرېږدئ که چېرته تاسې رښتيني مؤمنان ياست او که تاسې سود نه پرېږدئ نو بيا د الله او د هغه د رسول جنګ ته ځان تيار کړئ او که چېرته تاسې توبه وويسته نو ستاسې لپاره د خپلو مالونو سرونه دي (خپل مالونه دي) نه به تاسې ظلم کوئ او نه به په تاسې باندې ظلم کيږي .

[1] سورة البقرة آية ۲۷۸

لکن بیا به هم ځینې خلک سود کوي حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي رسول الله فرمایل : **بين يدي الساعة يظهرُ الربا** .[1]

ترجمة : د قیامت نه وړاندې به سود عام شي .

علماء فرمايي : پدې حدیث کې او نورو احادیثو کې چې پداسې ځای کې لفظ د ظهور راغلی دی معنی یې زیادت او خپرېدل دي .

د قیامت دا نښه هم واقع شویده او زیات خلک په سود باندې آخته دي .

## ٤٢. د دروغو ګواهي ویل او رښتیا پټول

د قیامت بله نښه داده چې خلک به د دروغو ګواهي ورکوي او اسلام د دروغو ګواهي په سختی سره منع کړیده حضرت عبد الرحمن بن ابي بکرة له خپل پلار ځخه روایت کوي هغه فرمايي مونږ له رسول الله سره ناست وو هغه مونږ ته دری ځله وویل : زه تاسې ته په لویو ګناهونو کې لویه ګناه ونه ښیم؟ مونږ ورته وویل : هو رسول الله راته وښایه رسول الله وویل : **الإشراك بالله، وعقوق الوالدين** (د الله سره شریک منل او د والدینو نافرمانی کول) پدې وخت کې رسول الله تکیه کړې وه او را کېناستو بیا یې وویل : **ألا وقول الزور** (خبردار او دروغ ویل) او دا خبره یې تکرار کوله او دومره یې تکرار کړه چې مونږ په زړونو کې وویل کاش بس کړي یې وای (ځکه مونږ فکر کاوه چې دی یې بیا بیا وايي پدې کې ده ته تکلیف دی او مونږ خو هسې هم په خبره پوه شوو) .

---

[1] رواه الطبراني

خو رسول ﷺ ددې خبرې پېشګويي کړې ده چې په آخره زمانه کې به داسې خلک را پيدا شي چې هغوی به د درواغو ګواهي ورکوي او رښتيا ګواهي به پټوي حضرت عبد الله بن مسعود ؓ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إِنَّ بَيْنَ يَدَيْ السَّاعَةِ: تَسْلِيمَ الْخَاصَّةِ، وَفُشُوَّ التِّجَارَةِ، حَتَّى تُعِينَ الْمَرْأَةُ زَوْجَهَا عَلَى التِّجَارَةِ، وَقَطْعَ الْأَرْحَامِ، وَشَهَادَةَ الزُّورِ، وَكِتْمَانَ شَهَادَةِ الْحَقِّ، وَظُهُورَ الْقَلَمِ** .[1]

ترجمة : د قيامت نه وړاندې (څه نښې راتلونکې دي) دا چې سلام به خاصو خلکو باندې اچوي ، تجارت به عام شي تردې چې يوه ښځه به له خپل خاوند سره په تجارت کې مرسته کوي (يعني تجارت به داسې اسان شي چې ښځې يې هم لکه د سړيو داسې کولی شي) د خپلولي پرې کول ، او د درواغو ګواهي ، او د رښتيا ګواهي پټول ، او د قلم ښکاره کېدل (يعني کتابت او ليکوالي زياتېدل او د ليکنې اسباب زياتېدل) .

د قيامت دا نښه هم واقع شوېده هغه کسان چې محکمو او عدالتونو ته ځي هغوی پدې بلد دي او هغوی ليدلي دي چې که په هرډول قضيه کې ته وې که ته ظالم او که مظلوم وې ستا لپاره په پيسو باندې ګواهان پيدا کېدلی شي په پيسو باندې ګواهان خلک نيسي او د خپلې قضيې څخه يې خبروي او په عدالت او محکمه کې يې وړاندې کوي او خپله دعوه ورباندې مخکې بوزي او په اوس وخت کې دا د درواغو د ګواهي ژوندی مثال دی .

## د قيامت نا واقع شوې نښې

د قيامت هغه نښې چې لا تر اوسه پورې نه دي واقع شوې او دا چې رسول الله ﷺ يې په اړه خبر ورکړی دی زمونږ يقين دی چې تر قيامت وړاندې به خامخا واقع کيږي .

[1] رواه الامام احمد

## ۱. جزیره عرب شنه کېدل

د قیامت یوه نښه چې تر اوسه پورې نه ده واقع شوې او واقع به شي هغه داده چې جزیره عرب به نهرونه او باغونه شي په اوس وخت کې جزیره عرب وچه زمکه ده او ۱٤۰۰ کاله وړاندې هم وچه زمکه وه لکن رسول الله یې په اړه پیشګویي کړېده چې دا به یو وخت شنه کیږي او نهرونه به پکې چلیږي او باغونه به پکې جوړیږي .

حضرت ابو هریره فرمایل رسول الله فرمایي : **لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكْثُرَ الْمَالُ وَيَفِيضَ حَتَّى يَخْرُجَ الرَّجُلُ بِزَكَاةِ مَالِهِ ، فَلَا يَجِدُ أَحَدًا يَقْبَلُهَا مِنْهُ وَحَتَّى تَعُودَ أَرْضُ الْعَرَبِ مُرُوجًا وَأَنْهَارًا .** [1]

ترجمة : قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو مال زیات شي او را تویې شي تردې چې یو څوک د خپل مال زکات وباسي او داسې څوک به نشي پیدا کولی چې خپل زکات ورکړي او تردې چې د عربو زمکه باغونه او نهرونه شي .

خو علماء فرمایي دا باغونه او نهرونه به څنګه کیږي؟ یا خو به عرب پخپله ددې کوښښ وکوي چې خپله زمکه اباده کړي او نهرونه به پکې وباسي او یا به یې الله دا ګرمه هوا په ښکلې او نرمه هوا بدله کړي او په خپل قدرت به پکې نهرونه او چینې را وباسي او زمکه به شنه کړي .

---

[1] رواه مسلم

## ۲. سپوږمی به وپړسیږي

د قیامت بله نښه داده چې سپوږمی به لویه ښکاره کیږي او چې اول هم را ښکاره شي داسې به ښکاره کیږي لکه د دوو او دریو شپو چې وي د حضرت عبدالله ابن مسعود ؓ څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : مِن اقْتِرابِ السَّاعَةِ انتِفَاخُ الأهِلَّةِ .[1]

ترجمه : د قیامت د نیږدې کیدلو یوه نښه داده چې سپوږمی به وپړسیږي .

حضرت انس بن مالک ؓ فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : مِنَ اقْتِرَابِ السَّاعَةِ أَنْ يُرَى الْهِلاَلُ قَبَلاً فَيُقَالُ : لِلَيْلَتَيْنِ ، وَأَنْ تُتخذَ المَسَاجِدُ طُرُقاً .[2]

ترجمه : د قیامت د نیږدې کیدلو دا نښه ده چې سپوږمی داسې ښکاره کیږي لکه د دوو شپو او دا چې له جوماتونو څخه د لارې کار واخیستل شي (ددې نښې تفصیل مخکې تیر شوی دی) .

## ۳. د حیواناتو او جماداتو خبرې

د قیامت بله نښه داده چې غیر ناطقه حیوانات او جمادات به له انسان سره خبرې کوي حضرت ابو سعد الخدري ؓ فرمایي : عَدَا الذِّئْبُ عَلَى شَاةٍ فَأَخَذَهَا فَطَلَبَهُ الرَّاعِي فَانْتَزَعَهَا مِنْهُ فَأَقْعَى الذِّئْبُ عَلَى ذَنَبِهِ ، قَالَ :: أَلَا تَتَّقِي اللَّهَ تَنْزِعُ مِنِّي رِزْقًا سَاقَهُ اللَّهُ إِلَيَّ فَقَالَ يَا عَجَبِي ذِئْبٌ مُقْعٍ عَلَى ذَنَبِهِ يُكَلِّمُنِي كَلَامَ الْإِنْسِ فَقَالَ الذِّئْبُ أَلَا أُخْبِرُكَ بِأَعْجَبَ مِنْ ذَلِكَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَثْرِبَ يُخْبِرُ النَّاسَ بِأَنْبَاءِ مَا قَدْ سَبَقَ قَالَ فَأَقْبَلَ الرَّاعِي يَسُوقُ غَنَمَهُ حَتَّى دَخَلَ الْمَدِينَةَ فَزَوَاهَا إِلَى زَاوِيَةٍ مِنْ زَوَايَاهَا ثُمَّ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنُودِيَ الصَّلَاةُ جَامِعَةٌ ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ لِلرَّاعِي : ( أَخْبِرْهُمْ ) ، فَأَخْبَرَهُمْ ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ( صَدَقَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُكَلِّمَ السِّبَاعُ الْإِنْسَ وَيُكَلِّمَ الرَّجُلَ عَذَبَةُ سَوْطِهِ وَشِرَاكُ نَعْلِهِ وَيُخْبِرَهُ فَخِذُهُ بِمَا أَحْدَثَ أَهْلُهُ بَعْدَهُ .[3]

---

[1] رواه الطبراني
[2] رواه الطبراني
[3] رواه أحمد

ترجمة : یو لېوه په یوه ګډ باندې حمله وکوله او وایې اخیستلو شپون (مال څروونکی) پسې ورغلو ورڅخه راخلاص یې کړو لېوه په خپله لکۍ باندې کېناستو ورته یې وویل ته له الله څخه نه ډارېږې زما د خولې نه دهغه رزق وویستو چې الله ماته را لېږلی وو ؟ شپونکې وویل دا څه عجیبه ده لېوه په خپله لکۍ ناست او لما سره داسې خبرې کوي لکه انسانان یې چې کوي لېوه ورته وویل : تردې هم په عجیبه خبره خبر درکړم محمد په یثرب (مدینه منوره) کې خلکو ته د هغه خلکو خبرې کوي چې مخکې تېر شوي دي بیا شپونکی را روان شو خپله رمه ورسره وه مدینې منورې ته راغلو خپله رمه یې د مدینې منورې په یوه کونج کې ودروله بیا رسول الله ته راغلو قصه یې ورته وکوله رسول الله امر وکولو چې خلک مانځه ته راوغواړي خلک مانځه ته را ټول شول رسول الله شپونکي ته وویل : دوی ته ووایه تا څه قصه کوله ... شپونکي ټوله قصه خلکو ته هم وکوله رسول الله وفرمایل : رښتیا یې وویل زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو ځناور له انسانانو سره خبرې وکوي او له یو انسان سره به د هغه د کمچینې (یا همسا) یو طرف خبرې کوي او د څپلۍ بند به یې ورسره خبرې کوي او د هغه ورون به ده ته خبر ورکوي چې له ده نه وروسته یې په کور کې څه وشول.

ددې حدیث په معنی کې یو عالم فرمایي :

**والمعنى: أنه يكون في آخر الزمان شيء يجعل في السوط أو في العصا أو نحو ذلك يترتب عليه حفظ كلام الأهل، وهذا كالمسجلات التي وقعت الآن، هي من هذا الباب، فقد تجعل في السوط وقد تجعل في العصا وقد تجعل في شبه ساعته في البيت صغيرة، كل هذا واقع، فإذا جعل المسجل في محل في البيت عند أهله وحول أهله سجل عليهم كل ما يقولون.**

ترجمة : ددې حدیث معنی داده چې په آخره زمانه کې به یو شی وي خلک به یې په کمچینه یا همسا کې او یا بل داسې ځای کې ایږدي د کور د خلکو خبرې به پکې ثبت کوي او دا اوسني اواز ثبت کونکي آلات اوس همداسې دي دا په همسا کې هم کېښودل کیږي او په

کمچینه کې هم کېښودل کېدلی شي او کله په داسې شي کې کېښودل کېدلی شي لکه یو وړوکی ساعت د کور په یوه کونج کې کېښودل کېدای شي دا ټول اوس واقع دي او کله چې دا اواز ثبت کونکی د کور په یوه کونج کې کېښودل شي هرڅه چې په کور کې تیریږي هغه یې ثبت کوي .

## ٤. د فرات سیند به د سرو زر غر را ښکاره کړي

د قیامت بله نښه داده چې د فرات سیند به یو غر را ښکاره کړي چې د سرو زرو به وي او خلک به د هغه په سر جنګونه کوي حضرت ابو هریره فرمايي رسول ﷲ فرمایل : **يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ فَمَنْ حَضَرَهُ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا رواية : يَحْسِرُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ .** [1]

ترجمة : نیږدې ده چې فرات به یوه خزانه د سرو زرو را ښکاره کړي هغه څوک چې ورته حاضر شول لدې نه د هیڅ شی نه اخلي او په یوه روایت کې د کنز په ځای د جبل (غره) لفظ راغلی دی .

حضرت ابی ابن کعب له رسول ﷲ څخه روایت کوي چې هغه مبارک فرمایل : **يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ فَإِذَا سَمِعَ بِهِ النَّاسُ سَارُوا إِلَيْهِ فَيَقُولُ مَنْ عِنْدَهُ لَئِنْ تَرَكْنَا النَّاسَ يَأْخُذُونَ مِنْهُ لَيُذْهَبَنَّ بِهِ كُلِّهِ قَالَ فَيَقْتَتِلُونَ عَلَيْهِ فَيُقْتَلُ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ .**

ترجمة : نیږدې ده چې فرات به به د سرو زرو غر را ښکاره کړي کله چې خلک دا خبر واوري نو ور به شي هلته چې کوم خلک دي هغوی به فکر وکوي که چېرته مونږ خلک ددې سرو زرو اخیستلو ته پرېښودل نو دا ټول به واخلي نو هغه به له بل ځای نه د راتلونکو کسانو سره جنګ وکوي او دا جنګ به سخت شي او له هرو سلو څخه به ۹۹ کسان مړه شي .

امام نووي پدې اړه فرمایي چې فرات به د سرو زرو غر څنګه را ښکاره کوي هغه فرمایي چې د فرات سیند به په بله لاره روان شي او هلته به په لاره کې یو غر وي چې هغه به په خاوره پټ وي چا ته به

---

[1] صحیح البخاري و مسلم

معلوم نه وي چې دا لاندې د سرو زرو دی نو د فرات اوبه چې په هغه خوا ورشي هغه خاوره به ورڅخه يوسي او را ښکاره به شي . **والله اعلم**

رسول الله ﷺ په اولني حديث کې منع وفرمايله او ويې فرمايل : که په هغه وخت کې هلته ځوک وي نو هغه د لدې سرو زرو څخه ځان وساتي ځکه ددې نه سره زر اخيستل د فتنې او جنګ او د وينو د تويولو سبب کيږي نو ځان ترې ساتل په کار دي .

دا د قيامت نښه ده خو دا به څه وخت واقع کيږي؟

ځينې علماء چې پدې جُمله کې امام بخاري هم دی فرمايي کله چې د قيامت يوه لويه نښه اور را ښکاره شي بيا به دا واقعه هم وشي او دا دده له کار نه ښکاره کيږي چې دا حديث يې په باب خروج النار کې ذکر کړی دی ..

يو لوی عالم الحليمي په خپل کتاب منهاج شعب الايمان کې ذکر کړي دي چې دا به د عيسى په وخت کې واقع کيږي ده همدا حديث ذکر کړی دی بيا يې ويلي دي چې داسې ښکاريږي لکه دا چې هغه وخت وي لکه رسول الله ﷺ چې خبر ورکړی دی چې مال به زيات شي ځوک به يې نه قبلوي او هغه وخت د حضرت عيسى په وخت کې وي او کېدای شي په هغه وخت کې دا د خلکو مالدار کېدل هم د همدې امله وي چې دا د سرو زرو غر به مسلمانان له مشرکينو څخه ونيسي . **والله اعلم** .[1]

همدا رايه د امام قرطبي هم ده ځکه هغه په خپل کتاب التذکرة کې همدا رايه ذکر کړېده او پريښې يې ده .

امام ابن حجر د بخاري شريف په شرح کې وخت نه دی ياد کړی خو دومره يې ويلي دي چې دا وخت به قيامت ته ډېر نېږدې وي .

---

[1] **المنهاج**

## ٥. زمکه به خپلې خزانې بهر ته را وباسي

د قيامت بله نښه داده چې په زمکه کې کومې پټې خزانې دي هغه به ټولې بهر ته را وغورځوي او هرڅوک به يې وينې خو هېڅوک به يې نه را اخلي اونه به چا ته په کار وي او نه به ورته څوک ضرورت محسوس کوي حضرت ابو هريرة فرمايي رسول الله فرمايل : تَقِيءُ الْأَرْضُ أَفْلَاذَ كَبِدِهَا أَمْثَالَ الْأُسْطُوَانِ مِنْ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ ، فَيَجِيءُ الْقَاتِلُ فَيَقُولُ فِي هَذَا قَتَلْتُ وَيَجِيءُ الْقَاطِعُ ، فَيَقُولُ فِي هَذَا قَطَعْتُ رَحِمِي ، وَيَجِيءُ السَّارِقُ ، فَيَقُولُ فِي هَذَا قُطِعَتْ يَدِي ثُمَّ يَدَعُونَهُ فَلَا يَأْخُذُونَ مِنْهُ شَيْئًا .[1]

ترجمة : زمکه به خپل پټ شيان لکه د سرو او سپينو زرو تنبې بهر ته را وغورځوي يو قاتل به راشي وبه وايي ددې لپاره ما قتل وکولو يو کس به راشي چې د خپلوانو سره يې خپلولي پرې کړې وي وبه وايي ددې لپاره ما له خپلوانو سره خپلولي پرې کړه يو غل به راشي وبه وايي ددې لپاره ما غلا وکوله او لاس مې پرې شو بيا به دا خلک را وغوښتل شي خو دوی به لدې نه هېڅ شی نه اخلي .

## ٦. مسلمانان به په مدينه منوره کې محاصره کړل شي

د قيامت بله نښه داده چې په مؤمنانو به زمکه تنګه شي او دوی به په مدينه منوره کې بند کړل شي حضرت ابن عمر فرمايي رسول الله فرمايل :

يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحِ.[2]

ترجمة : زر ده چې مسلمانان به په مدينه کې محاصره کړل شي او تردې چې د دوی د دښمن لرې ځای

---

[1] **رواه مسلم**

[2] رواه ابو داود

به سلاح وي (سلاح د خيبر د علاقې سره د يو ځای نوم دی)

يعني دښمن به مدينې منورې ته دومره را نېږدې شوی وي چې آخري سرحد او يا په بل عبارت د جنګ کرښه به د سلاح نومي ځای سره وي چې د خيبر سره نېږدې دی .

## ۷ . د جهجاه په نوم يو کس بادشاه کېدل

د قيامت بله نښه داده چې د قحطان قبيلې يو کس چې جهجاه به نوميږي بادشاه به شي حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله فرمايل : **لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِنْ قَحْطَانَ يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ** . [1]

ترجمة : ترهغه وخته پورې قيامت نه راځي ترڅو د قحطان قبيلې نه يو کس را بهر شي او هغه خلک په همسا سره شړي .

په بل روايت کې يې نوم هم ذکر شوی دی چې حضرت ابو هريره فرمايي : رسول الله فرمايل : **لاَ تَذْهَبُ الأَيَّامُ وَاللَّيَالِي حَتَّى يَمْلِكَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ " الْجَهْجَاهُ**. [2]

ترجمة : شپې او ورځې تر هغه وخته پورې نه ځي (قيامت نه کيږي) ترڅو يو سړی بادشاه شي چې جهجاه ورته ويل کيږي .

علماء فرمايي : چې په پورتني حديث کې **يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ** دا مطلب چې دی به په خلکو باندې غالب وي او خلک به دده اطاعت کوي او دی به په هغه خلکو باندې سخت وي خو دا چې دی به دا خلک د شر خوا ته بيايي او که د خير خوا ته پدې اړه هېڅ بيان نشته .

## ۸ . د احلاس فتنه او د الدهماء يا الدهيماء فتنه

---

1 **رواه البخاري**
2 **رواه مسلم**

د قيامت بله نښه داده چې يوه فتنه به واقع شي چې ډېره اوږده به وي او زر ختمېدونکې به نه وي حضرت عبد الله بن عمر فرمايي : **كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ فَذَكَرَ الْفِتَنَ فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا حَتَّى ذَكَرَ فِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ فَقَالَ قَائِلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا فِتْنَةُ الْأَحْلَاسِ قَالَ هِيَ هَرَبٌ وَحَرْبٌ ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ دَخَنُهَا مِنْ تَحْتِ قَدَمَيْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يَزْعُمُ أَنَّهُ مِنِّي وَلَيْسَ مِنِّي وَإِنَّمَا أَوْلِيَائِي الْمُتَّقُونَ ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ كَوَرِكٍ عَلَى ضِلَعٍ ثُمَّ فِتْنَةُ الدُّهَيْمَاءِ لَا تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِلَّا لَطَمَتْهُ لَطْمَةً فَإِذَا قِيلَ انْقَضَتْ تَمَادَتْ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا حَتَّى يَصِيرَ النَّاسُ إِلَى فُسْطَاطَيْنِ فُسْطَاطِ إِيمَانٍ لَا نِفَاقَ فِيهِ وَفُسْطَاطِ نِفَاقٍ لَا إِيمَانَ فِيهِ فَإِذَا كَانَ ذَاكُمْ فَانْتَظِرُوا الدَّجَّالَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ غَدِهِ.**

ترجمة : مونږ له رسول الله سره ناست وو نو فتنې يې يادې کړې بيا يې د فتنې په ياد کې څه ډېرې خبرې وکولې تردې چې د احلاس فتنه يې ياده کړه (احلاس هغه ټوټې ته ويل کيږي چې په اوښ باندې د هغه تر زين لاندې پرته وي او دې فتنې ته يې د احلاس فتنه ددې امله وويله چې دا به هم له خلکو سره سريښ وي او تر ډېره وخته به ترېنه نه جدا کيږي او اوږد دور به يې وي) يو چا ترې پوښتنه وکوله يا رسول الله دا د احلاس فتنه څه شی ده؟ رسول الله وفرمايل دا داسې فتنه ده چې پدې کې به خلک يو له بل څخه تښتي (څکه يو له بله به يې نفرت کيږي) او د چور فتنه ده پدې کې به خلک د خلکو مالونه چور کوي (حرب هغه چور ته ويل کيږي چې له چا څخه د هغه ټول مال واخلې او ده ته هېڅ هم پاتې نشي او د يو قول مخې حرب دېته ويل کيږي چې د چا اهل او مال هرڅه د هغه د لاسه بهر شي) بيا به د السراء فتنه راشي دا هغه فتنې ته وايي چې له انسان څخه پکې صحت ، عافيت ، خوشحالي لاړه شي (ديته د السراء فتنه څکه ويل شوېده چې دا اکثر د انسان د پټو گناهونو څخه راځي او السراء د سر نه ده راز ته ويل کيږي او يا ددې وجې نه ورته د السراء فتنه ويل شوېده چې په چا کې دا فتنه راشي نو دښمن يې پرې خوشحاليږي او د السراء يوع معنی خوشحالي ده) او دا زما تر قدم د لاندې ځای نه به زما د اهل بيت د يو سړي نه به پورته شي هغه به دا گمان کوي چې زما له ډلې څخه دی لکن

هغه به زما له ډلې (يعني زما له تابعدارانو او متابعينو) څخه به نه وي بېشكه زما دوستان متقين دي بيا به هغوى په يو كس سره صلح وكوي او په يو كس باندې به راټول شي پدا سې توګه چې ثبات او قيام به نه وي بيا به الدهيماء (تكه توره يعني زياته توره چې هېڅوك پكې په اسانه سره لاره نشي پيدا كولى) فتنه را ښكاره شي هغه به پدې امت كې هېڅوك هم پرې نه ږدي مګر څپېړه به وركړي څومره چې خلك ګمان كوي چې دا فتنه ختمه شوه همدومره به هغه اوږدېږي په هغه فتنه كې به داسې وخت راشي چې يو انسان به په سحر كې مسلمان او په بيګاه كې كافر وي تردې چې خلك به په دوه ډلو تقسيم شي يوه ډله به د ايمان وي چې هېڅ ډول نفاق به پكې نه وي او بله ډله به د نفاق وي چې هېڅ ايمان به پكې نه وي كله چې داسې وخت دربانديې راغلو نو بيا د دجال انتظار په همدې ورځ كوئ او يا يې ددې ورځې په صباء كوئ .

# ماخذونه

1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه
19. عون المعبود

20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد
25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم
27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
38. القواعد النورانية الفقهية
39. أنوار البروق في أنواع الفروق
40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين

41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي

42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين

43. القاموس المحيط

44. لسان العرب

45. النهاية في غريب الحديث والأثر

46. مختار الصحاح

47. الحاوي للفتاوي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې پښتو
2. ږنګه ځاله پښتو
3. آشیانه سوخته فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی پښتو
6. فرار از کزار فارسي
7. له کزاره تېښته پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان پښتو
9. ډم ډمکو جي او لیکوال پښتو
10. ادیان پشت در فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه پښتو
12. د انصاف ا و اعتدال لاره پښتو
13. کفري الفاظ پښتو
14. کل بچه فارسي
15. معلومات عمومي فارسي
16. د حج لارښود پښتو او انګلیسي
17. محمد رسول ﷲ سیرت اخلاق او پېژندنه پښتو
18. د اسلامي تاریخ له پانو څخه اول پښتو
19. د اسلامي تاریخ له پانو څخه دوهم پښتو

20. د اسلامي تاريخ له پانو څخه دريم
پښتو
21. د اسلامي تاريخ له پانو څخه څلرم
پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پانو څخه پنځم
پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پانو څخه شپږم
پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پانو څخه اوم
پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پانو څخه آتم
پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پانو څخه نهم
پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پانو څخه لسم
پښتو
28. د فقهي كتابونو له پانو څخه اول
پښتو
29. د فقهي كتابونو له پانو څخه دوهم
پښتو
30. د فقهي كتابونو له پانو څخه دريم
پښتو
31. د فقهي كتابونو له پانو څخه څلورم
پښتو
32. د فقهي كتابونو له پانو څخه پنځم
پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو او
انګليسي
34. د فقهي كتابونو له پانو څخه شپږم
پښتو
35. كلمه طيبة پښتو
36. الدعاء
پښتو
37. اللهم عربي،
پښتو، انګلسي
38. المسجد
پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه
پښتو
40. سلام پښتو